تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

محرر و مرتب


سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب


اولہ حصہ


ناشر

مدرسہ حذیقۃ الاحناف





بسم اللہ الرحمن الرحیم

# از تشریحات النابغہ

# مسئلۃ علم الغیب

خادم عالمزیب الحنفی

FacebookPage

علماء احناف علماء حق




03452131285

## مسئلة علم الغيب :

## التحقيق في علم الغيب

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿ فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَا آتَيْنَاهُ رَحْمَةً مِّنْ عِندِنَا وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا ﴾ ( سورة كهف آيت :٦٥)

بله مسئله نزاعي چې زير بحث ګرځو مه هغه مسئله د علم الغيب ده الى غير الله تعالى ته يې اثبات څنګه دا مسئله يوه سخته او پيچيده مسئله ده او متضاد نصوص په کې ښکاريږي کوم خلک چې مطلقاً نافيين دي د علم غيب د مخلوق نه هغوي هم استدلالات د قرآن عظيم الشان د نص نه او د چند صحيح احاديثو نه کوي او کوم خلک چې مثبتين دي عبادو ته د علم غيب د څه برخې هغوي هم د قرآن عظيم الشان نه نصوص پيش کوي او د صحيح احاديثو نه اخذ کوي خو مخکې له دې نه چې مونږ خپلې موضوع ته راځونو دا خبره مسلمه ده بيننا وبين الخصم چې کوم ګرو ته کاهنانو ته او پيريانو ته د غيبو علم نشته دا مسلمه خبره ده مونږ چې کوم اثبات جزي کوو د څه علم عبادو خواصو لره نو د هغې به دا معنى نه وي چې کاهن ته يې ثابته وو يا يې پيري ته ثابتوو پيريانو ته کاهنانو ته په اتفاق بيننا و بين الخصم علم غيب نشته او څومره ځايونو کې چې رد په علم غيب راځي اکثرا دا رد په کهانت باندې وي او رد د کلي علم غيب د نفي وي تفصيلي کلي او رد د علم غيب ذاتي وي.

نو زه اولاً هغه نصوص چې خلک د مطلق علم غيب نه انکار کوي او وايي که چا مخلوق ته د غيبو څه برخه هم ثابته کړه د علم کافر دي مشرک دي د هغوي استدلالات د قرآن عظيم الشان د نصوصو نه چې هغوي يې پيش کوي د قرآن عظيم الشان متعددو نصوصو کې د غيب د علم د مخلوق نه نفي شوي خو په کومو الفاظو کې چې نفي شوې داد غيب معرف په الف لام غيب منکر چيرته هم په قران عظيم الشان او نصوصو کې د مخلوق نه نفي نه ده ثابته غير معرف په الف لام سره.

# الإيرادات :

سورة الانعام آيت نمبر ۵۰:

﴿قُل لَّآ أَقُولُ لَكُمْ عِندِي خَزَآئِنُ ٱللَّهِ﴾ محبوبه خلكو ته داسې ووايه نه وايم تاسو ته چې خزانې له ما سره دي .

﴿وَلَآ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ﴾ او نه وايم تاسو ته چې زه په غيبو پوهيږمه .

﴿وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ إِنِّي مَلَكٌ﴾ او نه وايم تاسو ته چې زه فرشته يمه .

﴿إِنْ أَتَّبِعُ﴾ اتباع نه كومه .

﴿إِلَّا مَا يُوحَىٰٓ إِلَيَّ﴾ مگر د هغې چې وحي كيږي إِلَيَّ .

﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِي ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ أَفَلَا تَتَفَكَّرُونَ﴾ .

دارنگې سورة الاعراف آيت ۱۸۸:

﴿قُل لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلَا ضَرًّا﴾ مطلق راغلې بدون د استثناء نه زه ځان لره د ضرر او نفعې مالک تام نه يم دلته استثناء راځي :﴿إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ﴾

نو چې كوم ځاى كې مطلق دي هغه به په دې مقيد شي هر ځاى كې به دا قيد لگوي كه د خداى تعالى اراده او مشيت وي بيا د نفعى او ضرر ملكيت راته شته كه مشيت د الله نه وي بيا نشته دا مسلمه خبره ده كه څوک نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته داسې ملكيت او اختيار ثابتوي چې په مقابل د مشيت الله تعالى كې دا مقدم گڼي نو دا خو سره د مسلمان عقيده نه ده بعضې خلک داسې نظر لري كه د خالق يو كاريو شان خوښ وي او نبي عَلَيْهِ السَّلَام د هغې خلاف وغواړي نو دده به منل كيږي او هغه به خپله خوښه ورته ماتوي .

نو دغه غلطه خبره ده د نبي عَلَيْهِ السَّلَام ارادې او اختيارات د خالق په اختيار مقدم گڼل داد مسلمان عقيده نه ده دا جدا خبره ده چې دې د خداى تعالى په دربار كې يو محبوبيت لري څه دعوات خو يې قبلوي چې څه وغواړي هغه مني ليكن دې نه اختيار تام كلي ثابتول چې گڼې دې مختار كل دي او چې دې څه وغواړي هغه به كيږي ولو كه هغه د اِله اراده نه وي نو دغه غلطه عقيده ده .

نو دې ځای کې بیا نفي راځي:

﴿وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ که وای چې په غیبو پوهیدی.

﴿لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ﴾ طلب د کثرت د خیر به ما کړی وه.

دارنګې سورة یونس آیت ۲۰:

﴿وَيَقُولُونَ لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ فَقُلْ إِنَّمَا الْغَيْبُ لِلَّهِ﴾ غیب او د هغې علم الله سره دی.

دارنګې سورة هود آیت: ۳۱:

﴿وَلَا أَقُولُ لَكُمْ عِندِي خَزَائِنُ اللَّهِ وَلَا أَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ زه په غیبو نه پوهیږم.

دارنګې سورة النمل آیت: ٦٥:

﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ﴾ ووایه خلکو ته علم نه لري مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ څومره مخلوق چې دي دا ټول علم نه لري الْغَيْبَ په غیبو باندې.

﴿إِلَّا اللَّهُ﴾ غیر د الله نه.

﴿وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ﴾ دوی علم نه لري چې کله به دوی پورته کیږي یعني بعث بعد الموت د قیامت علم خاصه د باري تعالی ده دا نصوص چې دي ادله یې قویه د نافیینو د علم دي له مخلوق نه اوس که دلته تاسو وګوری په (۵) آیتونو کې چې نفي راغلې ده د الْغَيْبَ راغلې ده ګوره ټول معرف په الف لام نفي کیږي دغه ځای کې مفسرین کرام راجح تاویل دا را اخلي چې مراد له الف لام نه الف لام استغراقي دي:

﴿لَا يَعْلَمُ﴾ علم نه لري.

﴿مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ﴾ په هر فرد د افرادو د غیب علم باندې.

نو چې هر کله دلته نفي د هغه کلي استغراقي وشوه په بعضې مغیباتو چې من عند الله چا ته علم ثابتیږي د هغې سره هیڅ تضاد نه لري کل غیب تفصیلي جزي چا ته نشته دي.

دویمه دا ده څومره چې نفي راځي په هغه نفي کې نفي ذاتي ده.

علم غیب په دوه قسمه دي : (۱) ذاتي ، (۲) عطائي . یو هغه دي چې عطاء من الله دي چې الله یې چا ته ورکړي نو معنی دا چې ذاتاً څوک ددې علم نه لري ځکه اصلاً چې غیب دلته مونږ زیر بحث کړځولې دي نو دلته غیب په هغه څیز باندې دي چې د هغې درک حواس خمسه یې ظاهره نه شي کولې او د هغې په حصول باندې اسباب ظاهري عادي مستعمل نه وي .

فلهذا په دغه تعریف باندې بیا ترې نه موسمیاتو والا چې څه اخبارات ورکوي هغه د غیب نه بهر شول او په هغې ددغه علم اطلاق نه کیږي ځکه هغوي ظاهري اسباب لري د هغې اسبابو نه دوي ته څه نا څه پته لري .

تفسیر ابن جریر طبري دې آیت کریمه باندې ﴿وَلَا أَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ ذکر کوي :

أي ولا ادعي علم الغيب . زه د علم غیب دعوی نه لرم .

فإني لا أعلم إلا ما علمني الله . زه علم نه لرم مګر هغه چې ما ته زما رب علم راکړې دي .

نچوړ ددې څه شو چې نفي د ذاتي یې له ځان نه کړي نه د عطائي چې زه خپل نه لرم کوم څه چې لرم نو علمني الله ما ته اِله راکړې دي چې څه ثابت دي عطاء ده چې کوم نفي دي ذاتي دي دا هغه یو جواب ته اشاره ده چې دلته د لا یعلم هغه کس ته نسبت کیږي هغه مدعي لره چې څوک یې دعوی کوي چې دوي نه لري ذاتاً علم .

روح المعاني جلد ٦ صفحه ٢٤٢ :

ولا أعلم الغيب إلّا بإعلامه سبحانه .

زه په غیبو علم نه لرم مګر د خدای تعالی په اعلام که هغه علم راکړي بیا شته .

ددې د عبارت نچوړ هم دا چې ذاتي نفي دي زه مدعي له خپل ځان نه د غیبو د علم نه یم څه چې دي نو ما ته راکړې شوې دي دا هغه اول جواب ته ما دا دوه حوالې پیش کړي چې دلته نفي د غیب ذاتي راغلي ده رد نه دي په عطاء باندې .

دویم جواب چې دلته الف لام استغراقي دي روح المعاني جلد ١٠ صفحه ٢٢٢ په دغه آیت باندې : ﴿وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ﴾ بنکلي تفصیل کوي :

واستشكلت هذه الآية مع ما صح انه صلى الله عليه وسلم أخبر بالمغيبات الجمة .

يو غټ اشکال واقع شو د دې آيت کريمه د هغو رواياتو سره چې په هغې کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د جمعې غفيرې يعنې د ډيرو مغيباتو خبر ورکړې دي او دا نفي کوي او هغه علماء محدثينو من اعظم معجزات النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ګرځولې دي .

واختلف في الجواب . علماء اختلاف لري د تطبيق جواب نه دې د آيت نه به څوک جواب وکړي يعنې دغه آيتونه او هغه روايات چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د غيبو خبرو نه ورکړې دې تطبيق څه دي .

فقيل . چا دا جواب کړي :

المفهوم من الآية نفي علمه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام اذ ذاك بالغيب المفيد لجلب المنافع ودفع المضار .

کوم ځای کې چې نفي راغلي ده دا هغه علم دې چې هغه جلب د منافعو دفع د مضاراتو ده .

دې ته اشاره ده :

وما يعلمه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من الغيوب ليس من ذلك النوع .

او نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې کوم غيوب علم لري هغه د دې نوعې نه ، نه دي هغې کې دفع د مضراتو جلب د منافعو نه ده نو نفي دې ځای کې راغلې دا يو جواب شو . بيا وروسته وايي :

وقيل . چا ويلي :

المراد نفي استمرار علمه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام الغيب .

نفي استمراري راغلي ده .

ولو كنت أعلم و مجيء كان للاستمرار شائع .

كان د استمرار د پاره شائع كثير دي .

ولو كنت أعلم . كه زه په دائمي استمراري طريقه مي علم لرلې .

لاستكثرت من الخير . دا بله اشاره شوه .

دريم جواب كوي :

وقيل المراد بالغيب وقت قيام الساعة .

مراد دلته د غيب نه فقط د قيامت د ورځې علم دي هغه هیچا ته هم نه دي ورکړې شوې حتی نبي اکرم ﷺ ته هم نه دي ورکړي شوې .

څلورم جواب کوي :

أنّ في الغيب للاستغراق. الف لام په الغيب کې استغراقي دي .

وهو ﷺ لم يعلم كل غيب .

نبي علیه السلام په هر غیبو نه پوهیږي نفي د کلي تفصیلي ده .

فان من الغيب ما تفرد الله تعالى به . خدای تعالی په کې متفرد دي .

كمعرفة كنه ذاته تبارك وتعالى . هیچا ته د هغې علم نشته .

وكمعرفة وقت قيام الساعة .

پنځم تاویل کوي : اللباب التاويل للخازن هغه را اخیستي :

في الجواب عن ذلك انه يحتمل ان يكون قاله عليه الصلاة والسلام على سبيل التواضع والادب .

وایي ممکنه ده چې شي دې دا قول د نبي علیه السلام عاجزي وي .

والمعنى لا أعلم الغيب إلا أن يطلعني الله تعالى عليه ويقدره لي .

زه علم غیب نه لرم مګر که خدای تعالی اطلاع راکړي نو بیا شته .

تاسو ته ما هغه لږه تکړه ترې را اخیستي :

واختار بعضهم الاستغراق أي لا يعلم من في السماوات والارض كل غيب إلا الله فانه سبحانه يعلم كل غيب لانه الأوفق بالمقام .

دا په هغه ځای باندې .

قل لا يعلم من في السماوات والارض الغيب الا الله .

په هغه ځای یې دا تفضیل کړې دي .

ولو كنت أعلم الغيب لأستكثرت من الخير .

هغه عبارت وه چې مخکې ما ذکر کړه .

وجوز بعضهم ان يكون منهم من يعلم بعض الغيوب .

بعضې علماء جواز ورکوي چې انبياء کې څوک دي په بعضو غيب پوه شي .

ففي بيان قواطع الاسلام تأليف العلامة ابن حجر بعد الرد .

بیا لیکي چې علامه ابن حجر په دې باندې رد کړي په هغه چا :

على من أكفر من قيل له اتعلم الغيب فقال نعم .

ته په غيبو پوهيږې هغه وويل نعم ، بعضې علماء وايي دا کافر شو نو ابن حجر صاحب پرې رد کړي چې دې ته کافر مه وايي هغه به بعضې مغيبات يادوي .

لأن فيما قاله تكذيب النص وهو قوله تعالى : ﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾ ( الانعام آيت : ۵۹)

وقوله تعالى : ﴿عَالِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَى غَيْبِهِ أَحَدًا إِلَّا مَنِ ارْتَضَى مِن رَّسُولٍ﴾ ( الجن آيت : ۲۶-۲۷)

استثناء وشوه نو په دغه استثناء کې رسل ته څه ورکول کيږي کنه نو :

فالخواص يجوز أن يعلموا الغيب في قضية او قضايا .

خواص چې رسل او انبياء دي اولياء دي جائز دي چې په غيبو باندې دي علم ولري په يوه قضيه او په ډيرو قضايا وو کې .

كما وقع لكثير منهم واشتهر والذي اختص به تعالى انما هو علم الجميع وعلم مفاتح الغيب المشار اليها بقوله تعالى : ﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ﴾ .

دا مراد دي دا ددوي د استدلالاتو نه د چند تفاسيرو اقوال په جواب کې مونږه ذکر کړل چې مراد د دغې مغيباتو نه مغيبات ذاتي علم دعوى كول دي بدون د توسط ددې نه چې دا من عند الله وي او يا استغراقي نفي شوې دي يا غيب استمراري دي د انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ علم كله وي كله نه وي .

گاهي با پاي اعلا نشینم گاهي با پاي پشت پاي خود نه بینم

نو دغه تعبیر ترې نه کول په کار وي کومو شعراء چې په شعرونو کې ددې نه مزید څه نسبتونه کړي دي هغه دي محمول شي په حالات د سکر او فنا في الرسول د هغوي باندې اقتداء دي ناجایزه شي لکه بعضې شاعران دا وایي چې زرې زرې نه خبردار دي ولې نه یې مني دا شعر زره زره علم نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ته ثابتول دا علم کلي تفصیلي دي دا د اسلافو رایه نه ده مفسرین په دغه رایه رد کوي بعضې مغیباتو علم دي د کل نه دي نو دا شعر غلط دي په قانون د شریعت کې او البته صاحب ددې یو عاشق وه که فنا في الرسول کې ترې بې اختیاره دا الفاظ وتلې وي تقلید یې ناروا دي بل څوک دې نه وایي.

او دغه شان ومن علومک علم اللوح والقلم نو د هغې دا معنی کول چې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ علم په لوح قلم کې هم څه حصه شته خو صحیح دي او که دا سې وایي چې د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ علم ډیر زیات دي او دا لوح او قلم د هغې نه یوه حصه ده یعنې د هغه خو دومره علم دي دا ترې یوه حصه ده نو دا غلط تاویل دي په دغه ځای باندې یعنې د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ په علومو کې د لوح او د قلم څه علم هم شته هغه تقدیر علم هم بعضې اوقاتو کې خدای تعالی ورکړې دي دا مسئله اختلافي ده چې انبیاء ته د تقدیر علم ورکولې شي او که نه بعضې علماء یې رد وي بعضې ثابتوي لیکن مثبتینو د پاره قوي دلیل د سورة یوسف د حضرت یوسف عَلَیْهِ السَّلَامُ او قیدیانو چې کوم خوبونه لیدلي وه او ده بیا د هغې تعبیرونه ورکړې وه نو بیاده جواب ورکړو:

﴿قُضِيَ الْأَمْرُ الَّذِي فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ﴾.

فیصله کړې شوې وه نو قضاء یې شوې ده نو که ده سره د قضاء علم نه واي نو څنګه مخکې د وقوع ددې کار نه هغه مخکې نه اعلان کوي چې دا فیصله په قضاء کې شوې ده چونکې قضاء یو تقدیري یو پټ ځای دي د صوفیه وو د اهل کشف اقوالو ته په کې ډیر اعتبار دي.

امام رباني مجدد الف ثاني رَحِمَهُ اللهُ د هغه دا رایه ده چې عام متکلمین وایي قضاء دوه دي: (۱) معلق ده، (۲) مبرمه ده، په مبرمه کې د عبادو دخل د دعاء نه وي او مطلب دا چې په هغې کې که څوک دعا او هم کړي مبرمه فیصله پرې تغیر نه خوري او هر چې معلق ده:

لا یرد القضاء الا الدعاء.
قضاء نه شي ردولی مګر دعاء یې ردوي. روایت د ترمذي شریف دي.
نو دا هغه قضاء یې مبرمه نه ده دا معلق قضاء ده دا په دعاء ګانو بدلیږي.
امام رباني رحمه الله وایي چې عام متکلمین دوه قضاء ثابتوي معلق مبرمه لیکن دې وایي چې زه وایم چې د معلقې او مبرمې په مینځ کې یوه دریمه قضاء ده چې هغلته د اخص الخواصو دعاء کار کوي او د هر چا دعاء په کې کار نه کوي بیا یې دې د پاره یو مثال ویلي وي.

زمونږ په علاقه کې یو سړي ما ته راغې چې دعاء راته وکړه چې زما ځوي وشي واي زه چې مراقبه کې کیناستم معلق قضاء کې د ده لپاره د ځوي څه ذکر نه وه او هر چې مبرمه وه هغې کې د چا دعاء کار نه کوي نو ما ورته وویل چې ستا ځوي نه کیږي واي ده ما ته وویل چې ته څنګه د خدای تعالی دوست یې چې ستا په خوله یو ځوي ما ته نه راکوي واي دا پیغوریې ډیر بد پیغور راکړ وخت په وخت به د سائل دا پیغور ما ته رایادیده او په ما به ډیر زیات خفګان راتلو چې دا یې څه عجیبه خبره وکړه.
یو کال تیر شو یو کال بعد یې د یو ولي مزار یاد کړي دي سره خوا کې تیریدمه ما ته القاء وشوه چې ورشه دغه صاحب ما ته وسیله کړه هغه ستا مشکل به پوره شي واي لاړمه چې هغه مې وسیله کړو ورته واي القاء راته وشوه چې هغه سړي ته زیري ورکړه خدای تعالی به ځوي ورکړي واي لاړمه هغه ته مې زیري ورکړو هغه ته خدای تعالی ځوي ورکړو واي زه پوهه شومه چې د معلقې هغلته خو ما مراقبه کې وکتل ده د پاره څه نه وه مبرمه کې خو دعاء کار نه کوي نو زه پوهه شومه چې د معلقې د مبرمې مینځ کې یوه دریمه قضاء هم مخفي ده چې د خاصو اولیاو دعاء په کې کار کوي او د هر چا یې نه کوي.
دا چې قضاء ګانې دې دري شي نو دا چې مونږ څومره هم دنیا کې ګورو قضاء ګانې دري دي د خالق قضاء په مخلوق قیاس هم بنه نه وي خو دې کې به فوائد وي د اقانونو نه هم عقلاء جوړ کړي وي افغانستان کې ابتدائیه ده مرافعه ده بیا تمیز دي پاکستان سیشن دي بیا هائیکورټ دي او سپریم کورټ دي نو قضاء ګانې دلته هم دري دي هلته هم دري دي هر ځای کې چې ګوري دري وي نو بیا داسې وي دا نورې قضاء ګانې څه د پاره وي یوه فیصله

وکړه بس خلاصه شوه دې کې د سفارش کار وي یو په کې تحقیق پوره وشي بل په کې سفارش چې کار وشي نو دې د پاره دا بعضې اوس ګوره چې په افغانستان کې چې ابتدائیه فیصله وکړي مرافعې ته لاړ شي مرافعه فیصله وکړي تمیز ته لاړ شي تمیز کې سفارش کار کوي که نه یې کوي سفارش پیش کړه ورته دلته به یې مجرم ثابت کړې وي د اعدام فیصله به وي هلته به یې معاف کړي نو دا په هغه دعاګانو هغې کې فرق راشي خو چې کله تمیز فیصله وکړه ګویا کې دا هغه مبرمه قضاء شوه بیا په کې څه نه چلیږي البته باچاء وقت لره څه اختیارات په هغې کې هم وي خالق خو مختارِ کل دي کولې شي چې په قضاء مبرمه کې هغه څه تغیر راولي را دې ولې د هغه خپل اختیار دي ، خو کله په عامو اوقاتو کې په هغې کې تغیر نه راځي دا هغه نصوص وو چې دوي ترې نه استدلالات کوي .

اوس دا نصوص یقیناً که ظاهر ته وګوري د مفسرینو شرحې ته و نه ګوري همدغه ددوي دعوی ثابتوي چې مخلوق ته د غیبو علم نشته خو لیکن قرآن عظیم الشان کې څه ډیر نصوص دي چې مخلوق ته بیرته ددې څه حصه ثابتوي نو قران کریم به ټول منو داسې نه چې نیم را واخلو او نیم پرې وجنګوو :

المِراء في القران کفر .

حدیث شریف کې راځي قرآن کریم کې جګړه کفر دي نو جګړه شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې جګړه داده چې یو آیت د بل ټکراو جوړ کړي معارضه پرې جوړه کړي معارضه نشته تطبیق یې وکړه .

سورة کهف آیت : ٦٥ :

﴿ فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَا آتَيْنَاهُ رَحْمَةً مِّنْ عِندِنَا ﴾ .

معروف قول دادی چې خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ .

﴿ وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا ﴾ .

ورکړي وه مونږ ده لره د خپل جانب نه علم .

زمونږ بعضې حنفي علماء پاکستان کې او اکثر په افغانستان کې دوي داسې فکر جوړ کړي ده چې اثبات د علم غیب نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته داد بریل عقیده ده او نفي ګڼې د دیوبند عقیده ده حقیقت کې هغه حقیقت دوي هم منې چې د کوم ځا عقیدې جوړې دي کشف مني اولیاء ته

الهام مني تلقي بالقلب مني ورته د انبياء علیهم السلام وحي منامات صحيحه په څو طريقو چې د علم د حصول هغه لارې دي هغه ټولې مني شان عزت دا هرڅه مني خو بس :

کونه علماً ، دغه ټکي نه مني واي نه دا انباء ده اخبار ده او دا اظهار دي دې ته علم نه ويل کيږي نو دا نصوص مونږ هغه خپله حنفي علماء ته هم ښکاره کوو چې د قرآن عظيم الشان په اصطلاح او د محدثينو مفسرينو په اصطلاح باندې د اولياء دغې علم ته علم غيب ويل شوې دي نو بيا محض ضد مه کوي له بريلويانو سره چې دوي ورته علم وايي مونږ ورته علم نه وايو انباء هم ورته ويل شوې ده :

﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ ﴾ .

او اخبار هم ورته ويل شوې دي اظهار على الغيب هم ورته ويل شوې دي اطلاع على الغيب هم ورته ويل شوي علم هم ورته ويل شوې نو دا ټول اطلاقات يو دي فقط دومره چې ذاتي يې مه مني عباد و ته عطاء يې کړي او بل دا چې کلي تفصيلي مه مني جزي يې کړي يوه خبره شته کلي اجمالي په انواعو باندې ثابت دي نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته په دې کائنات کې چې څومره نوعې د مخلوقاتو وي ددې علم وه په يو وخت کې ورکړي شو روايت د دارمي شريف دي :

فعلمت ما في السموات وما في الارض .

وروسته به د احاديثو باب کې راشي په اسمان او ځمکه کې چې څه وه زما پرې علم راغې .

او دويم حديث د مصنف عبد الرزاق دي په هغې کې را اخلي :

فعلمت ما بين المشرق والمغرب .

او روايت د مسلم دي :

ان الله زوى لي الارض فرأيت مشارقها ومغاربها .

مشرق مغرب د ځمکي مې وليدل نو له دغو نه کلي اجمالي د انواعو ثابتيږي لکه اوس مونږ ته پته نشته چې په بحر کې څو نوعه ماهيان دي او څو نوعه مخلوق دي ليکن محمدي عربي ته دا علم وه چې دلته څومره نوعې مخلوق دي په ځنګل کې څومره نوعې د مخلوقاتو

دي ته علم نه لري هغه ته دا علم وه خو يو علم كلي تفصيلي په فرد فرد جزي جزي دي دغه د بريلويانو عقيده ده بريلويان دا وايي چې د خداى تعالى د علم او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د علم هيڅ فرق نشته يو شان علم دي فقط فرق يې دي په ذاتيت كې او په عطايت كې چې دا عطايي دي او هغه ذاتي دي نور چې څومره په دې كائنات كې څه دي څومره اوني دي دا ونو څومره پاڼي دي څومره كاڼي دي څومره گياه گانې دي او څومره شگي دي ددې ټولو علم واي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته شته دي دا لكه محبت كې ورخوا ړه شوي نو صراط مستقيم بين الافراط والتفريط دي نه به زياتي كوي نه به كمې كوي .

زمونږ دغه عقيده نه ده د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او د ټولو انبياو علم په نسبت سره ما او تاته عالم او مخلوق ته چې واخلي نو بيا خو ددې ټول مخلوق نه زيات دي خو بيا دا ټول علم را واخلي په مقابل د علم الله كې داسې وي لكه څنگه چې درياب كې يو څاڅكي وي علم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او د ټولو انبياو د ټولو انسانانو په مقابل د علم الله تعالى كې په اقليت او اكثريت كې داسې دي لكه هغه چې بحر شي او دا څاڅكي شي او امام رباني رَحِمَهُ اللهُ فرمايي دا مثال هم د الفاظو د تنگي د لاسه ورکول كيږي گني واي دا تمثيل هم تام نه دي ځكه چې دغه څاڅكي خو ددې بحر نه دي كنه او علم د مخلوق حادث دي او علم د باري تعالى قديم دي دغه مثال څنگه وركوي واي دې نه اخوا د الفاظو تنگي ده مونږ الفاظ نه لرو خلك څنگه پوهه كړو چې دا علم د هغې علم څومره كم دي ځ فقط تفصيل د قلت او كثرت دي نو علم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د عام مخلوق د علم په مقابله كې هم دغومره ډير دي لكه چې هغه بحر واخلي د ټول مخلوق بيا څاڅكي وي دا هم صحيح ده .

خو بيرته علم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په مقابل د علم الله كې دومره كم دي نكه څاڅكي چې د بحر سره مثال لري نو داسې به نه وايي چې دا علم په كليت كې او په هر تفصيلي جزي جزي كې د خداى تعالى په شان علم دي خو فقط په عطا او ذات كې فرق لري نه عطائيت او ذاتيت كې .

يو فرق لري په كليت او جزئيت كې بل فرق لري چې علم ددې خواصو په بعضې مغيباتو دي كله ترې نفي شي نه وي ورسره او بل دا چې غير استمراري دي او علم د خداى تعالى استمراري دي هغه كلي تفصيلي دي دا كلي تفصيلي نه دي كومو ځايونو كې چې د

کلي فهم کیږي هغه حمل دي په کلي اجمالي د انواعو باندې.

فعلمت ما في السموات والارض.

انواع د عالم کلاً ورته کشف شول.

رأیت مشارقها و مغاربها.

څمکه مشرق مغرب ټول یې ولیدل.

هره مسئله کې یو خواډانګ دي بل خوا پړانګ دي څه دوي وخوړو څه هغوي وخوړو هغوي د نفس حقیقت نه انکار کوي د انبیاء د شان او عظمت او د اولیاء د کمال نه انکار کوي او دې ارخ ته چې دي دا څوانان په کې دومره ور خواړه شي چې خبره بل ځای ته ورسوي نو هغه عقیده هم بیا جوړه نه وي مینځ مینځ کې ځي خپله په لاره سمه بیامومي او زمونږ د افغانستان علماء چې دې هغوي اوس کلک د دیوبند په مینه مست شوې دي چې بریلوي وویل چې علم شته دي نو فرق وکړه هغه به کلي وایي ته جزي وو ایه کتبو را اخیستي کنه:

﴿وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا﴾.

زاد المسیر في علم التفسیر جلد ۴ صفحه ۲۳۸ بعضې چاپونو کې جلد ۵ صفحه ۱۱۸ دې ځای کې:

قال ابن عباس اعطاه علما من علم الغیب..

ورکړي وه خدای تعالی خضر علیه السلام ته څه علم د غیب نه.

که نفسِ عبد ته د علم غیب ثبوت ته شرکي عقیده ووایي نو د:

﴿وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا﴾ سره به څه کوي دا خو تکراو لري دا علماً ابن عباس رضي الله عنه په علم غیب شرحه کړو نو دا دا ثابتوي چې مخلوق ته علم غیب شته:

لا یعلم من في السموات والارض الغیب الا الله.

نشته ټکراو جګړې جوړوي جګړه مه جوړوه تطبیق وکړه نفي د ذاتیت وکړه اثبات د عطاء وکړه نفي د کلیت استغراقي وکړه اثبات د جزي وکړه او یا کلي اجمالي علی النوع.

څومره تفسیرونو په دې ځای کې لدې نه علم غیب اخیستي دي:

الوجیز للواحدي جلد ۱ صفحه ۴۷۶:

وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا اى اعطيناه علماً من علم الغيب.

تفسير ابن كثير جلد ۵ صفحه ۱۷۹ :

وكان رجلاً يعلم علم الغيب.

وه خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ يو سړي چې علم غيب يې لرلو.

تفسير بيضاوي جلد ۳ صفحه ۵۱۰ جمهور په دې دي چې دا خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ وه په علماً باندې شرحه كوي :

مما يختص بنا ولا يعلم الا بتوفيقنا وهو علم الغيوب.

هغه علم وركړو چې هغه خاص مونږ پورې دي هيڅوک د هغې علم نه لري مګر كه مونږ توفيق وركړو بيا وي هغه علم الغيوب دي دا مونږ ده ته وركړې وه.

تفسير قرطبي جلد ۱۱ صفحه ۱٦ :

وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا اى علم الغيب.

البرهان في علوم القرآن جلد ۴ صفحه ۲۹۰ :

وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا اى من العلم الخاص بنا وهو علم الغيب.

هغه علم چې مونږ پورې خاص دي چې علم غيب دي هغه مو وركړې وه څه حصه د هغې.

تفسير ابي السعود جلد ۵ صفحه ۲۳۴ :

وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا خاصاً لا يكتنه كنهه ولا يقادر قدره وهو علم الغيوب.

هغه علم چې د هغې كنهه چا ته پته نه لږېږي اندازه يې نه لږي چې هغه علم غيب دي.

تفسير واحدي جلد ۲ صفحه ٦٦٧ :

وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا اى اعطيناه علما من علم الغيب.

تفسير بغوي جلد ۳ صفحه ۱۷۳ :

وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا اى علم الباطن الهاما.

دا علم باطن وه په القاء الهام سره.

تفسير فتح القدير جلد ۳ صفحه ۲۹۹ :

وعلم الله سبحانه من علم الغيب الذي استأثر به .
دا هغه علم د باري تعالى چې علم الغيب دي ده ته يې ترې نه څه ور کړه .
ابجد العلوم جلد ۲ صفحه ۴۶۹ د علم لدني تعريف كوي :
والعلم الذي تعلمه العبد من الله تعالى من غير واسط ملك .
دا هغه علم دي چې حاصل يې كړي بنده د خداى تعالى نه بغير د واسطې د فرشتې نه.
د بعضې علماو مشائخو نه مونږ ته طالبان حكايت كوي هغوي دا وايي دا علم غيب نه ده دا وحي وه نو دا علماء خو زمونږ مدرسين دي بخاري تدريس كوي د وحي اقسام طالبانو ته بيانوي چې وحي يو اځې بواسطة جبرائيل ته نه ويل كيږي :
اوحينا الى ام موسى .
مور د موسى عَلَيْهِ السَّلَام ته مونږ وحي وكړه نو دا راتلل د جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام خو نه وه دا وحي په معنى د الهام سره وه مونږ دې ته الهام وكړو په زړه كې .
﴿ فَتَلَقَّىٰ آدَمُ مِن رَّبِّهِ كَلِمَاتٍ ﴾ .
زده يې كړي د رب خپل نه كلمې دا تلقي بالقلب وه كله وحي په تلقي د قلب سره وي كله په زړه كې القاء الهام وي كله منامات صادقه وي او كله فراست كشف وي كله په غوږونو لري خبره اوريدل وي كله په پوزو د نيكانو خكلي رائحه د بدن هغه بدبوي حس كول وي په څو طريقو لاري د دغې علم وي يو اځې واسطه د جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام نه ده .
تفسير النسفي جلد ۲ صفحه ۲۲ :
وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا يعني الاخبار بالغيوب وقيل العلم اللدني ما حصل للعبد بطريق الالهام .
حاصل شي بنده ته بطريق الالهام سره .
تفسير روح المعاني جلد ۹ صفحه ۴۷۵ :
اى علماً لا يكتنه كنهه ولا يقادر قدره وهو علم الغيوب .
د علم غيب اطلاق يې پرې كړې دي .

تفسیر ابن کثیر جلد ۳ صفحه ۸٦ په دې کې د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما طویل حدیث د حضرت خضر علیه السلام واقعه کې ابن عباس رضي الله عنه خپلو شاګردانو ته شرح کوي د تفصیل د دې واقعې نو بیا فرمایي :

وکان رجلاً یعلم الغیب .

وه حضرت خضر علیه السلام چې علم یې لرلو په غیب باندې .

دویم دلیل د نص قرآني نه چې د بعضې مغیباتو علم خواصو ته وي .

سورة یوسف آیت : ۴۹ :

﴿ثُمَّ يَأْتِي مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ فِيهِ يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ﴾ .

د دې نه مخکې کوم تعبیر چې شوې دې دا خوبې د خوب نه تعبیر ورکړې دې چې هغه چاغ غویان او خوار غویان چې هغه چاغ غویان راغله هغې نه کومه اشاره یې چې ورکړې ده بعضې علماء تعبیرات د خوبونو هم په غیبو کې یادوي هغې ته خو څه اشاره موجوده وي هغې اشارې نه دوي فهم وکړي د فراخ سالي اول کلونه او د قحطي داروستني کلونه د غې ته علم غیب نه دې ویلې شوي چې د تعبیر کړې دې ځکه دې ته په هغه خوب کې اشاره موجوده وه هغه خوار غویان چې وه دغه کلونه د قحطي وه چاغ غویان چې وه کلونه د فراخ سالي وه چې ۷ کاله به باران په تاسو وي بیا به ۷ کاله قحطي راشي بیا چې څه تاسو کرلي وي هغه به ټول ختم شي لږ تُخم به پاتې شي هغه خوب دې نه اخوا ساکت دې اشاره نشته دې له ځان نه دا خبره ورته کوي :

﴿ثُمَّ يَأْتِي مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ﴾.

بیا به راشي وروسته له هغې نه کال .

﴿فِيهِ يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ﴾

د خلکو دعاء به قبوله شي بیا به په هغوي باران وشي او بیا به په هغې کې نچوړوي دوي خپلو انګورو له باغونه به بیرته بنه شي .

دې ځای باندې تفسیر ابن جریر طبري جلد ۷ صفحه ۲۳۲ ذکر کوي :

وهذا خبر من یوسف علیه السلام للقوم عما لم یکن في رؤیا ملکهم .

دي نه اخوا يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کوم اخبار ورکړي دي د بادشاه په خوب کې دي ته اشاره نه وه .

ولكنه من علم الغيب الذي آتاه الله .

داد علم غيب وه هغه علم غيب چې خداى تعالى يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ ته ورکړي وه داد غيبو څه علم وه چې ده ته خداى تعالى ورکړې وه چې دومره وخت بعد به بيا داسې مسئله راځي .

دريم دليل : ﴿ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِندَهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ ﴾

احاطه نه شي کولې دا فرشته ګان او عباد .

﴿ بِشَيْءٍ ﴾ په څه شي .

﴿ مِّنْ عِلْمِهِ ﴾ له علم الله نه چې علم غيب دي که احاطه کوي .

﴿ إِلَّا بِمَا شَاءَ ﴾ بعضې هغه چې د خالق خوښه وي نو که مطلق د نفي قايل شو نو د الا بما شاء استثناء به هيڅ فائده ونه کوي احاطه نه شي کولې په څه شي د علومو غيبي وو باندې چې انکار مه کوه بلکې نفي د ذاتي وکړه د کلي تفصيلي استغراقي وکړه .

﴿ إِلَّا بِمَا شَاءَ ﴾ مګر په بعضې هغه اشياو چې د خالق خوښه وي هغه ورکوي .

تفسير بغوي جلد ۱ صفحه ۳۴۳ ﴿ إِلَّا بِمَا شَاءَ ﴾ په دغه ځاى باندې ذکر کوي :

يعني لا يحيطون بشيء من علم الغيب إلا بما شاء أن يطلعهم عليه .

مګر هغه چې د خالق څه خوښه شي په هغې اطلاع ورکړې ورته .

څلورم دليل : سورة نساء آيت : ۱۱۳ :

﴿ وَأَنزَلَ اللَّهُ عَلَيْكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُن تَعْلَمُ ﴾ .

نازل کړي خداى تعالى په تا باندې کتاب او حکمت علم يې درکړي تا ته هغه .

﴿ لَمْ تَكُن تَعْلَمُ ﴾ چې د ستا پرې علم نه وه هغه يې درکړي .

تفسير ابن جرير الطبري جلد ۷ صفحه ۴۸۰ :

﴿وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ﴾ د دې معنى کوي :

من خبر الأولين والأخرين وما كان وما هو كائن.

علم يې درکړو هغه چې تا ته علم نه وه هغه خبر د اولينو د آخرينو د ماکان او کائن څه چې شوي وه تر دغه هغه علم يې درکړو.

فکل ذلك من فضل الله عليك يا محمد مذ خلقك.

دا يې په تا احسان وه نو دغي ته علم وويلې شو خبر د اولينو او آخرينو ته او د ماکان هغه علم يې ده ته ورکړو دې ځای نه بعضې بريلوي حضرات استدلال کوي چې ماکان کل الاشياء شو بس ذراتو ذراتو علم شو تعصب او ضد نه وي په کار او بې ځايه اعتراضات هم د خلکو راګرځول نه وي په کار دا زمونږ خپل فقهاء چې دعوی د علم غيب ته کفر وايي زه وروسته د هغوي عباراتو نه پيش کوم اوس خپلو فقهاء ته به څه محمل ګوري که نه به يې ګوري که ستا دا عقيده شي چې د بعضې مغيباتو علم دي هيڅ مشکل نشته او که ستا د کل مغيباتو علم وي د خپلو فقهاء عبارت ته هيڅ لاره نه شي جوړولې دغه رنګ نبي اکرم ﷺ يو طرف وايي :

تعرض عليّ اعمالكم.

عمل مو ما ته پيش کيږي.

ان كان خيراً فحمدت الله عزوجل وان كان شراً فاستغفرت لكم.

که نيک وي زه ثناء وايم که بد وي زه بخښنه ستا د پاره غواړم.

ددې نه معلوميږي چې د امت اعمالو نه خبريږي او هغه ورته پيش کيږي.

بلخوا روايت د بخاري شريف دي زه به د حوض کوثر په غاړه يمه صحابه به را روان وي هغه زمانه واپس کړي شي زه به آواز وکړمه : اصحابي اصحابي ، ما ته به وويلې شي :

لا تدري ما احدث بعدك. تا ته علم نشته تا ته پته نشته چې تا نه بعد دوي د څه احداث کړې وه.

دا هغه جماعات دي چې مرتد شوې وه نو هلته لا تدري ورته وويلي شي تا ته علم نشته نو چې ته د جزي قائل شي چې بعضې اوقاتو کې شته بعضې کې نشته هيڅ اعتراض نشته دغلته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ثابتوي هلته ترې نفي شوې دي او که ته د کلي استغراقي قائل شي نو د لا تدري د پاره هيڅ جواب بيا نه لري په کلي استغراقي کې خو چې يو روايت کې نفي ثابته شوه بس د هغې د پاره ستا استغراق ختم شو ځکه ته خو د تفصيلي جزي په هر فرد قائل يې کنه نو چې قائل يې که يو ځای کې درته نفي ثابته کړه بيا در سره لاره نشته دي بيا به دعوی مني ورسره ځکه ستا استغراق خو يې ختم کړو .

دوي بيا څه وايي ما ته يو بريلوي راغلي وه وايي ستا ډيره بنه عقيده ده خو په علم غيب کې ته د کلي قائل نه يې ما ورته وويل د کلي خو څوک هم قائل نه دي د اسلافو کتابونه وګوره ته ما ته داسې يو عبارت پيش کړه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ علم غيب کلي لري د يو چا قول پيش کړه هم يې زه منم علم لري په جميعو مغيباتو باندې دا پيش کړه ځکه دا خو چيرته چا نه دي را اخيستي ولې ځان نه داسې رايه ثابتوي بيا هغه ما ته وويل چې :

علم آدم الاسماء كلها .

کل راغې د کل اشياء علم ثابت شو چې ادم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته دي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته په طريقِ اولی دي ما ورته وويل چې ګوره دا کل مفسرين يو څه پورې لړوي يا د اولاد هغه نومونه ياد وي يا د بعضې سامانونو نومونه ياد وي هغې پورې خاص کوي ذرات نه ياد وي ، وايي دلته خو کل راغلې دي ظاهره کې ما ورته وويل زه به درته کل وښايم په نصِ قرآني کې او بيا به ته خپله هلته تاويل کوي د بلقيس باره کې راځي :

﴿أُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ﴾ ورکړې شوې وه بلقيس ته د هر شي نه .

نو کل خو راغې اوتيت هم راغې اوس څه معنی شوه چې علمِ غيبي څه ورکول شوي وه چې ددې د بادشاهي سره يې تعلق لرلو د هغې بادشاهي چې څه ته ضرورت وه هغه ټول اسباب دې سره وه .

نو آخره کې ما ته وايي ستا خپل نظر دي زما خپل نظر دي خو دا کوم ځای کې چې لا تدري ته پيش کوي يا نور دا ټول نسيان دي دا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دې وخت کې هير شوي وه لکه

دیو سړي قرآن کریم ټول یاد وي او بیا ترې نه یو ځای له یاده ووځي نو داسې خو نه ده چې علم یې نشته علم یې شته خو له یاده یې وتلې ده دا کوم چې روایات د نفي دي نسیان باندې حمل دي.

نو ما ورته وویل په اسلافو کې داسې یو قول پیدا کړه چې هغه دا ستا قول کړې وي ستا قول خو نه شم منلې ته خو خصم یې داسې قول پیدا کړه چې یو چا ویلې وي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نفي د علم چیرته راغلي ده نو دا حمل ده په نسیان باندې بالکل ما ته مسلمه ده خو یو قول هم داسې نه شي پیدا کولې په اسلافو کې او دغه مونږ چې کوم د جزي اثبات کوو بعضې ثابتوو بعضې نفي کوو دا خو زه وخت په وخت تاسو ته تفاسیر ښایم چې زمونږ اسلافو هم دغه تطبیقات کړي دي کومو ځایونو کې چې د علم نسبت راغې نو زمونږ حنفي علماء چې اخبار او انباء مني او علم ورته نه وایي هغوي دې هم په دې باندې ځان پوه کړي چې اطلاق د علم پرې ناروا نه دي مفسرینو کړې یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ ته یې علم غیب ثابت کړې دي خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ ته یې ثابت کړې دي او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته په دغه ځای کې خبر د اولینو آخرینو ته علم ویل شوې دي.

دارنګې تفسیر بغوي جلد ۲ صفحه ۲۸٦ بعضې چاپو جلد ۱ صفحه ۴۷۹: ﴿وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ﴾ دا وایي دې کې تاویلین دي من الأحكام یو قید دا چې د احکامو علم درکړې شو دا معروف تاویل دي دلته.

دویم دا من علم الغيب وعلمك ما لم تكن تعلم، علم الغیب هغه چې تا ته علم نه وه هغه درکولې شو چې علم غیب دي.

پنځم دلیل: سورة الانعام آیت: ۷۵:

﴿وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ﴾

دارنګې مونږ وښودلې ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته عجائبات د ځمکو او اسمانونو دي د پاره چې شي د موقنینو نه.

تفسیر القرطبي جلد ۷ صفحه ۲۳ یا جلد ۷ صفحه ۱۷ دلته تاسو هغه خپله نحوي قاعده متوجهې کړي:

نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ.

باب د رؤیت کې چې کله متعدي مفعول واحد ته شي رؤیت بصري وي او چې کله متعدي مفعولینو ته شي نو دا رؤیت قلبي علمي وي دې ته د افعالو قلوبو رؤیت بیا وېلې شي نو دې ځای کې متعدي دي مفعولینو لره. نحن فاعل دي ابراهیم مفعول اول دي ملکوت مفعول ثاني ده او تعدیت د باب د رأیت چې مفعول ثاني نه بدون د حروف جر نه وشي بالذات وشي نو دا رؤیت قلبي وي په معنی د علم باندې.

دارنګې نُرِي مونږ علم ورکړو ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د عجائباتو د اسمانونو او د ځمکو نو دا علم شو ده لره دا رؤیت د سترګو نه دي بلکې دا علم دي دا رؤیت قلبي دي مکاشفه ده مکاشفه چې کوم رؤیت وي هغې وخت کې دوي ورته سترګې پټوي تاسو به صوفي کتلې وي چې د کشف دعوی کوي سترګې پټوي لکه خوب چې ګوري سترګې دې پټې وي دا لیدل وي خو زما او ستا خوبونه په شیشه د نفس کې وي دې کې د خل شیطاني ډیر زیات وي او خوبونه د انبیاو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ او د خواصو دا په شیشه د قلب کې وي چې هغې نه تعبیر په مکاشفې کیږي او زما او ستا خوب نه تعبیر په کشف کیږي کشف کې د خل شیطاني وي او مکاشفه کې د خل شیطاني نه وي نفس د شیطان اډه ده په وجود کې شیطان تیار ناست وي هر قسم ته غلط غلط خوبونه په تا لیدلې شي هر چې قلب دي:

جاثم علی قلب بني آدم.

د خواصو قلوب ذاکر وي چې هر کله ذاکر شي:

اذا ذکر خنث. شیطان ترې وتبنتي چې وتبنتي هلته چې څه ولیدل شول بیا هلته د خل شیطاني نه وي نو دا حالات ده لیدلي وه نو قرطبي صاحب فرمایي په مذکوره صفحه:

أراد به ما في السماوات من عبادة الملائكة والعجائب وما في الارض من عصيان بني آدم.

اسمان کې عبادت د ملائکو او عجائبات یې ولیدل او علم یې پرې راغي په ځمکه کې عصیان د بني آدم وه دغه وخت کې چې دا کشف ورکړې شو تمامه دنیا کې چې څوک په زنا او لواطت اخته وه په هره ګناه ده ولیدل یو دم دا ټول ورته کشف شول.

فكان يدعوا على من يراه يعصي فيهلكه الله.

چا به چې ګناه ګوله ده به ولیده نو ښیرې به یې ورته وکړې هغه به هلاک شو .

فأوحى الله إليه يا إبراهيم أمسك عن عبادي .

وحي ورته وشوه ابراهيم عليه السلام بند کړه د ښیرو زبان دې زما د عبادو نه .

أما علمت أن من أسمائي الصبور .

زما په اسماو کې صبور راغلې دې زه صبر کوم .

دوي لره د دغه معنى چې ذکر شوه مروي ده د حضرت علي رضي الله عنه نه عن النبي صلى الله عليه وسلم په مرفوع حديث کې د دغه معنى پرته ده .

چا وويل معنى يې داده :

كشف الله له عن السماوات والارض .

اسمان او د ځمکي نه ورته څه کشف شول .

حتى العرش واسفل الارضين .

عرش او ۷ ځمکي ښکته دا ټول ورته کشف شول .

وروي ابن جريج عن القاسم عن ابراهيم النخعي قال : فرجت له السماوات السبع فنظر اليهن حتى انتهى إلى العرش وفرجت له الأرضون فنظر اليهن ورأى مكانه في الجنة فذلك قول و آتيناه أجره في الدنيا .

دغه وه چې دنيا نه يې د جنت مقام وليدو .

دا آيت كريمه د ابراهيم عليه السلام د علم ثبوت كوي چې هغه ته د اسمان او ځمکي د عجائباتو علم ورکړې شو .

شپږم دليل : سورة يوسف آيت : ۳۷ ، دواړه قيديان ورته راغلل خوبونه يې ليدلي وه :

﴿إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ﴾

دي اوس هغوي ته خپل يو كمال ښايي چې زه د غيبو داسې يو علم لرمه نو ستاد خوبونو په تعبير څنګه نه پوهيږمه .

نو اول ورته خپل کمال بنايي او کمال نه بعد ورته دې کمال کې هغوي ځان ته متوجه کړل هغې نه بعد ورته خپله عقيده بنايي هغې نه بعد ددوي په عقيده رد کوي دوي مشرکين وه دعوت د خير ورکوي او بيا په آخره کې ددوي د خوب تعبير ذکر کوي وفرمائيل يوسف عليه السلام:

﴿لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ﴾ نه به راځي تاسو ته دوه دي.

﴿تُرْزَقَانِهِ﴾ هسې دوه دي چې درکولې شي تاسو لره هغه.

﴿إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِ﴾ مګر خبر درکومه تاسو ته په تعبير د هغې باندې.

﴿قَبْلَ أَن يَأْتِيَكُمَا﴾ مخکې د راتلو د طعام نه تاسو ته سهر کې خبر درکوم چې غرمه طعام داسې را روان دي غرمه به خبر درکوم چې ماښام طعام داسې را روان دي دا ټول اخبار د غيب نه دي.

يو ميلمه راغلي وه زما هغه ته مې دا ځاى پيش کړو وايي دا خو اخبار دي او اخبار خو زه منم ما ورته وويل لږ صبر خو وکړه:

﴿ذَٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي﴾ دا هغه کمال دي چې ما ته زما رب علم راکړي دي.

ګوره اخبار هم ورته وويلې شو علم هم ورته وويلې شو.

﴿إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ﴾ اوس عقيده ورته بنائي.

تفسير قرطبي جلد ۹ صفحه ۱۹۱ بعضې چاپونو کې صفحه ۱۲۵ ده دا ليکي:

**وكان هذا من علم الغيب خُص به يوسف عليه السلام.**

دغه څه چې دلته بيان شول دا علم غيب وه چې خاص شو په دې سره يوسف عليه السلام ده ته ورکړې شو.

نو خص به يوسف دا معنى نه چې بل ته جائز نه دي **خص به يوسف في ذلك الوقت** دغه وخت کې ده ته ورکړې شو.

۷- نمبر: سورة يوسف آيت نمبر: ۹۶ آيت نمبر ۸۶ کې حضرت يعقوب عليه السلام يوه خبره کړې وه:

﴿قَالَ إِنَّمَا أَشْكُو بَثِّي وَحُزْنِي إِلَى اللَّهِ وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾
دا مخکې ذکر شوې وه دا دعوی ده کړې وه د بچو مخکې زه علم لرم چې دې دا علم ماته من الله عطائي شو هغه لا تعلمون چې تاسو نه لرې .

﴿فَلَمَّا أَن جَاءَ الْبَشِيرُ أَلْقَاهُ عَلَىٰ وَجْهِهِ فَارْتَدَّ بَصِيرًا﴾ کله چې راغې بشير قميص يې د يعقوب عَلَيْهِ السَّلَام په مخ واچوه بينا شو .

﴿قَالَ﴾ ده وفرمايل :

﴿أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ إِنِّي أَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ .
دا هغې ته اشاره وه چې په آيت نمبر ۸٦ کې ده دا دعوی کړې وه نه مې وه درته ويلې زه علم لرم من الله هغه چې تاسو يې نه لرې .

نو ﴿إِنِّي لَأَجِدُ رِيحَ يُوسُفَ﴾ يې ويلې وه دعوی يې کړې وه أَعْلَمُ هغه صادقه شوه دغه د غيبو خبره د حضرت يعقوب عَلَيْهِ السَّلَام ته علم په نص قرآني کې وويلې شو چې دا زه علم لرم من الله .

ددې نه بعد بعضې هغه اطلاقات چې اظهار على الغيب اطلاع على الغيب انبأ عن الغيب تعبيرونه ترې شوې علم غيب جزي عطائي همدغه معبر دي په تعبير د اطلاع على الغيب سره ، انباء عن الغيب سره اظهار على الغيب سره اخبار على الغيب سره دا ټول اطلاقات يو شان دي خو اطلاق د علم هم پرې کيدې شي .

سورة آل عمران آيت ۴۹ ، حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَام دعوى کوي :

﴿وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾
خبر به درکومه هغه چې تاسو يې خورې هغه چې ذخيره کوې يې په کوټو کې داد غيبو خبره وه دې نه تعبير په انباء سره وشو همدغه انباء په نورو نصوصو مونږ ثابته کړه چې علم ورته وويلې شي ځکه اخبار او انباء سبق علم غواړي چې علم نه وي کله اخبار کيږي .

## حکایت :

ما ته دوه ملایان یو وخت کې راغلي وه نو هغوي دا وویل چې مونږ انباء او اطلاع منو خو مونږ ورته علم نه شو ویلې بیا ما ورته دا نصوص پیش کړه نو هغوي ما ته وویل چې تاسو دې علم غیب ته عطائي وایي ما ورته وویل هاو داسې منطقیان شان یې ځان ګڼلو وایي عطاء خو دې ته ویلې شي چې سلب الشيء عن النفس واعطاءه الی الغیر ، ځان نه شي سلب کول او بل ته ورکول چې عطائي شو نو معنی دا چې خدای تعالی د ځان نه سلب کړي دې او بل ته یې ورکړې دي .

نو ما هغوي ته ددې خبرې په دوه قسمه جواب وکړو یو په نقض باندې او دویم مې صحیح محمل ددې ورته وښودلو چې په مختصر کې د عطاء یو تعریف به په حاشیه کې وي چې سلب الشيء عن النفس واعطاءه الی الغیر خو عطاء په دوه قسمه ده یو عطاء ده په ذوي الاعیانو کې بل عطاء ده په اعراضو اوصافو کې عطاء په اعیانو کې همدغه تعریف دې چې سلب د شيء دې د نفس نه او اعطاء ده غیر له مثال دا قلم دې دا پانړه ده یا موبائل دې مثال په طور داد اعیانو نه دې عین دې دا چې ته چا ته عطاء کوي نو نه شي کیدلې چې تا ته دې هم پاتې وي هغه سره دې هم وي خپله تا نه لاړ هغه ته ورکول شو نو سلب الشيء عن النفس واعطاءه الی الغیر داد عطاء په اعیانو کې تعریف دې .

هر چې د عطاء تعریف دې په اعراضو اوصافو کې هغلته دا تعریف نه صحیح کیږي چې سلب د ځان اعطاء غیر لره زه د یو مسئلې علم تا ته درکوم نو زه په هغې کې معلم ستا یمه مثال په طور تا ته مې چې درکړو نو زما علم خو لا پسې قوي شو کنه له ما نه خو علم سلب نه شو نو دا خو مسئله د علم ده د اعراضو نه ده د اوصافو نه ده خالق چې چا ته ورکړو نو دا معنی نه شوه چې ځان نه یې سلب کړو بل له یې ورکړو .

دا هغه تحقیقي جواب د مختصر دا عبارت دې چې دوي د عطاء تعریف دغه کوي خو دوي دا وویل چې هلته خو دا فرق په کې نشته دې چې دا عین دې دا عرض دې ما ورته وویل چې نشته زه به نقض وکړمه ته په علم ظاهر کې عالم یې او که نه یې وایي چې یمه ما ورته وویل دا علم چا درکړي وایي خالق راکړې دې ما ورته وویل ستا دا نقض هلته هم وارد دې

چې ځان نه يې سلب کړي تا ته يې درکړې دي چې څه جواب هغه ځای کې ستا وي همغه جواب په علم غيب کې زما ده.

دوارو نه چې لاره ورکه شوه نو دا يو په کې لږ زيات منطقي شان وه وايي زه خطاء شو مه دا علم ظاهر مونږ ته خالق نه دي راکړي چې انکاريې وکړو ما ورته وويل چې بنه خالق نه دي درکړې وايي نه ما ورته وويل نبي عليه السلام فرمايي:

انما انا قاسم والله يعطي.

زه قاسم يمه خدای تعالی يې ورکوي.

دا څه شي يادوي همدغه علم يادوي کنه علمين يادوي هغه د ورکولو والا دي قسمت يې زه کومه نو په دغه تعريف باندې کله اعتراض درباندې بيا ونه کړي چې عطاء خو دې ته وايي چې سلب د شي نفس نه واعطاءه الى الغير داسې يو عجيب قوم دي چې ته نصوص پيش کوه دلائل پيش کوه او دوي به يو شي پسې کلک اونښلي تا به ايات پيش کړې وي.

اوس د مختصر د حاشيې په دې عبارت د علمناه من لدنا علما د ابن عباس رضي الله عنه د علم الغيب مقابله چيرته کيږي دا کوم انصاف دي بيا د هغې يو بنه محمل پيدا کړه کنه هغه خو بنه علماء وه د هغوي عبارت ته يو بنائسته محمل پيدا کړه چې دا عطاء ده په عين کې نه به عرض کې بس صرف ضد او عناد دی دا کوم علماء چې وايي دې وخت کې مناظرې ناروا دي سمه خبره کوي ځکه مناظره خو د احقاق الحق او ابطال الباطل لپاره وي چې جانبينو ته يو دليل نه وي معلوم بل يې پيش کړي هغه يې تسليم کړي اوس جګړه ده ته دلايل وايه هغه به مخکې نه ستا دليل د پاره ستا خبره خو دسره نه مني او نه حق مني ولو که دا حق په نصوصو اياتونو ثابت وي خو دې وايي چې زه په څه شکل ددې د دلائلو جواب پيدا کړم.

نهم دليل: دارنګې سورة آل عمران آيت ۱۷۹:

﴿وَمَا كَانَ اللهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ﴾ نه دي خدای تعالی چې اطلاع درکړي تاسو ټولو ته په غيبو باندې.

نفي راغله بعضې خلکو غوندې نفي کلي به کوي چې بالکل نه ورکوي لږ هم نه ورکوي چا ته هم نه ورکوي داسې نه ده.

﴿ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِن رُّسُلِهِ مَن يَشَاءُ ﴾ ليكن خداى تعالى غوره كوي د رُسلو نه هغه چې خوښه يې وي.

﴿ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ﴾

نو دا ثابتوي چې كل ته دا علم نه وركوي كه وركوي بعضې خلكو ته يې وركوي او دا ثابتوي چې غيب كلي تفصيلي نه وركوي، كه وركوي په بعضې مغيباتو كې يې وركوي.

لسم دليل: دا رنګې سورة جن آيت نمبر: ٢٦:

﴿ عَالِمُ الْغَيْبِ ﴾ اِنه په غيبو عالم دي.

﴿ فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِ أَحَدًا ﴾ غلبه نه وركوي خداى تعالى په غيبو علم باندې يو كس لره.

نكره في سياق النفي راغله يوه ته هم نه وركوي كه استثناء نه واى بس دلته بيا مسئله جوړيدله كوم ځاى كې چې نفي راغلي ده غيب معرف راغلي ده لا يعلم غيباً دا سې الفاظ نشته چې نكره في سياق نفي راشي چې بيخي د يو غيب علم هم نشته غيب استغراقي كلي يادوي الف لام په كې استغراقي كه دې ځاى كې نفي راغله مطلقاً.

﴿ فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِ أَحَدًا ﴾ يو ته غلبه نه وركوي.

كه اوس دلته استثناء موجوده نه واي بيا مسئله ګرانه وه بيا به هيچا ته هم د علم نه قائل كيدې خپله استثناء موجوده ده:

﴿ إِلَّا مَنِ ارْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ ﴾ چې غوره كړې د يو رُسل نه هغه ته څه وركوي بيا اظهار على الغيب دې نه تعبير په انباء هم كيدې شي.

يولسم دليل: سورة آل عمران آيت نمبر: ۴۴، د مريمې بي بي او د ذكريا عليه السلام د حالاتو بيان يې كړې دي بيا فرمايي:

﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ ﴾ دا د اخبار د غيب نه.

﴿ نُوحِيهِ إِلَيْكَ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ ﴾ ته نه وي له دوي سره هغه وخت.

﴿ يُلْقُونَ أَقْلَامَهُمْ أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ ﴾ تاسو وي نه هلته.

دا ټول نصوص یا په درجه د انباء کې وي یا د هغې نه تعبیر په اطلاع یا د هغې نه تعبیر په اظهار او یا په علم سره تعبیر ورنه ترې شوې دي .

دغه یولس (۱۱) نصوص دلائل ددې دي چې مخلوق خواصو ته څه حصه ددې شته دي هغه ایاتونه چې مخکې ما پیش کړل دلیل ددې دي چې نشته دي اوس تکرار و مه کوه تطبیق خودبخود دې ته جوړېږي چې نفي د الغیب معرف استغراقي راغله کل غیب مه منه او اثبات د بعضې مغیباتو وکړه او نفي د ذاتي وکړه اثبات د عطاء وکړه چې علم من الله یا من لدنا دا ټول تصریحات ددې دي چې عطائي دي ذاتي نه دي .

دلته دوه مستند روایات زه ذکر کوم چې د چا هم دې مسئله کې شک وي دا دې وګوري او انتهائي دې وویرېږي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په علم دې اعتراض نه کوي اولین اعتراض د رحمة للعالمین په علم غیب باندې داد مدینې منورې منافقانو کړې دي .

تفسیر بغوي جلد ۲ صفحه ۱۴۰ د ﴿لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ﴾ ددې آیت کریمه شرحه کې :

وقال السدي رَحِمَهُ اللَّهُ قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عرضت علي امتي في صورها في الطين . پیش کړې شو زما امت ما ته په خپلو صورتونو کې په یوه خټه کې دیوال کې مراد د طین نه دیوال دي .

کما عُرِضت علی آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ . لکه آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته چې پیش شوې وه دغه شان ټول امت ما ته هم پیش شو .

واُعلمتُ . علم راکړې شو ما ته د :

من یؤمن بي ومن یکفر بي . زما امت کې چې څوک په ما کفر کوي او څوک په ما ایمان راوړي ددې ټولو علم راکړې شو ، ګوره تعبیر د علم کوي .

فبلغ ذلك المنافقين . وه رسید له دا خبره منافقینو ته .

فقالوا استهزاءً . قول یې وکړو د ټوکو او مسخرو په نیت .

زعم محمد أنه يعلم من يؤمن بـه ومن يكفر. گمان نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ددې كوي چې من يؤمن به ومن يكفر به باندې دې علم لري دا هغه يادوي.

من لم يخلق بعد. چې تر اوسه پيدا نه دي.

ونحن معه وما يعرفنا. مونږ ورسره يو مونږ نه پيژني قيامته پورې چې امت را روان دي دعوى كوي چې مؤمن او كافر باندې زه علم لرم.

اعتراض منافقانو وكړو:

فبلغ ذلك رسول الله صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ته دا پيغام لاړو چې منافقان داسې خبره كوي.

فقام على المنبر. خبره پيچيده وه او ضروري وه منبر ته پرې پورته شو غتهه اجتماع يې جوړه كړه.

فحمد الله واثنى عليه. د خداى حمد او ثناء يې وويله.

ثم قال ما بال اقوام طعنوا في علمي. څه چل دي قوم لره چې زما په علم طعنې لګوي. دا علم د غيبو وه قيامته پورې مؤمن د كافر نه بيلول دا علم د غيبو دي او تعبير هم په علم سره كيږي او بيا وايي اعتراض هم زما په علم كوي څه چل دي قومونو لره طعنه لړوي زما په علم.

لا تسألوني عن شيء. پوښتنه مه كوي زما نه باره د څه شي كې هغه.

فيما بينكم وبين الساعة. ستاسو نه تر قيامته پورې.

الا أنبأتكم به. مگر خبر به دركومه.

څنگه دعوى يې وكړه ده مبارك به ډيره عاجزي كوله دا اظهارات يې نه كول خو وه ورسره څه علم ددې چې كله منافقينو اعتراض وكړو نو ورېده نن نه قيامته پورې چې د څه خبرې پوښتنه كوي وكړي، به خبر دركوم.

فقام عبد الله بن حذافة السهمي فقال من ابي يا رسول الله (صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)؟. پلار مې څوك دي.

قال حذافة . عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوه شو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په جلال دي .
دا همغه روايت دي چې هغه کوم روايت کې راځي چې ما يو خوا بل خوا صحابه وو ته وکتل په څادرونو کې سرونه تيت کړي وه ژړل يې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه خفګان باندې خفه وه عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پاڅيده .

بل روايت کې راځي چې راغي د التحيات په شکل ورته کيناستلو يا ودريدلو .

فقال يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضينا بالله رباً وبالاسلام ديناً وبالقرآن اماماً وبك نبياً فاعف عنا عفا الله عنك .

مونږ ته عفوه وکړه خدای تعالی به تا ته او ستا امت ته عفوه وکړي .

فقال النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فهل انتم منتهون ؟

تاسو منعه شوې طعنه به زما په علم بيا نه لګوي خلکو وويل چې نه به لګوو .

ثم نزل عن المنبر . بيا د منبر نه را کوز شو .

فانزل الله تعالى هذه الآيات : ﴿لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ﴾ .

ددې شان نزول کې امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ دا را اخيستي دي دا ډيرو نورو تفاسيرو هم را اخيستي دي نو چې کوم څوک هم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په علم کې شک لري دا روايت دې سترګو ته ونيسي دده شکوک به ختم شي او دا د منافقانو طعنه وه په علم د محمدي عربي باندې هسې نه چې په نفاق کې راشي او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پرې هغه وخت خفه شوي دي که اوس هم پرې څوک طعنه لږوي نو په مرقد کې به له دغه امتي نه ناراضه او خفه شي .

بعضې حضراتو د بريلويانو نه چې دلته افراط نه کولې نو مونږ به دغه الفاظ هم دلته نه ذ ويلي چې دومره لري او دومره نه لري دا هم ما ته سوء ادب ښکاريږي دا مسئله بالکل زير بحث ګرځول نه دي په کار زمونږ لا څه علم دي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د علم به مونږ اندازي ولږوو وروسته به تاسو ته روايات راشي او مخکې هم تاسو ته ما اشاره وکړه په نسبت د مخلوق د علم به بيا علم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دومره زيات ګڼي لکه هغه چې بحر وي او د ټول مخلوق علم ورته څاڅکي وي هغه به دومره زيات ګڼي خو داسې به نه وايي چې دا مقابل د علم الله کې مساوي دي نه د هغې مقابل کې بيا ډير قليل دي .

دويمې واقعې ته ګورئ چې اعتراض په دې علم چا کړي دي کتاب المغازي د واقدي جلد ١ صفحه ١٠٩ : تبوک ته نبي عليه السلام را روان دي يو منزل کې شپه راغله صبا شو اوښان خريدل ورکه شوه اوښه د نبي عليه السلام.

**فضلت ناقة النبي صلى الله عليه وسلم القصواء . فخرج اصحابه في طلبها .** صحابه کرام د هغې په طلب کې ګرځيدي.

**وعند رسول الله صلى الله عليه وسلم عمارة بن حزم .** د نبي عليه السلام سره عمارة بن حزم موجود دي.

**عقبي بدري .** عقبه اولى يا ثاني کې شرکت کړې وه.

**قتل يوم اليمامة شهيداً وكان في رحله .** دده په ډله کې زيد بن اللصيت وه دا ډلي ډلي او کورني وي.

**احد بني قينقاع .** يو رجل د بني قينقاع نه وه.

**كان يهودياً .** اصلاً يهودي وه.

**فأسلم .** اسلام يې راوړو.

**فنافق .** منافق شو.

**وكان فيه خبث اليهود وغشهم .** د يهودو هغه بدي په کې وه.

**وكان مظاهراً لأهل النفاق .** دي مظاهر د اهل نفاقو نه وه.

**فقال زيد وهو في رحلٍ عمارة عند النبي صلى الله عليه وسلم .** په دې وخت کې عمارة بن حزم موجود نه وه هغه د نبي عليه السلام سره وو هلته ځان ته ډلي دي خيمي يې وهلې دي او په دې ډله کې زيد بن اللصيت منافق موجود دي دې زيد بن اللصيت دا خبره وکړه :

**أليس محمد يزعم أنه نبي ويخبركم عن خبر السماء .** آيا دعوى نه کوي چې پيغمبر دي او د اسمان خبر درکوي.

**وهو لا يدري اين ناقته**. پوهیږي نه چې اوښه یې چیرته ده کوري دا اعتراض په علم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام باندې منافق وکړو نبي عَلَيْهِ السَّلَام جلال کې راغلو.

**فقال رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. چا ورته وویل:

**ان منافقاً يقول**. منافق وايي.

**إن محمداً يزعم أنه نبي وأنه يخبركم بأمر السماء ولا يدري اين ناقته واني والله ما أعلم إلا ما علمني الله وقد دلني عليها**.

زه قسم بالله علم ذاتي نه لرم که څه دي ما سره ما ته زما رب علم راکړي دي کوري بیرته یې استثناء وکړه ذاتي نه لرم که دي ما ته زما رب علم راکړي.

**وقد دلني عليها**. اوښه باندې ما ته ښودنه کړي ده چې چیرته ده.

**وهي في الوادي في شعب كذا وكذا الشعب اشار لهم اليه**. اشاره یې هم ورته وکړه هغه فلاني ناو کې ده.

**حبستها شجرة بزمامها**. ددې په غاړه یا پوزه کې چې کوم پړي دي هغه د اوني په جرړه کې نښتي دي هغه ما ته را روانه ده خو دې اونې حصاره کړې ده.

**فانطلقوا حتى تأتوا بها**. امر یې وکړو لاړشي رایې ولي.

**فذهبوا فجاءوا بها**. ورغله رایې وستله همغه شان وه چې کوم نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ترې اخبار کړي وه.

دا واقعه او ددغې منافق دا اعتراض دلائل النبوة للبيهقي رااخیستي جلد ٥ صفحه ٢٣٢ امام بيهقي يې په دليل د نبوة کې رااخلي دا علم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام دليل د نبوت ګرځوي منکر یې د نبوت منکر دي داد نبي عَلَيْهِ السَّلَام د شان منکر دي.

فتح الباري جلد ١٣ صفحه ٣٦٤، أسد الغابة د ابن اثير جلد ١ صفحه ٢٠٦، البداية والنهاية جلد ٣ صفحه ٢٩٤، الكامل في التاريخ د ابن اثير جلد ١ صفحه ٣٤٢، الوافي بالوفيات جلد ٤ صفحه ٦٨، تاريخ ابن خلدون جلد ٢ صفحه ٥٠، تاريخ الامم والملوک جلد

٢ صفحه ١٨٤، تاريخ الاسلام للامام الذهبي جلد ٢ صفحه ٦٤١، دې ټولو كتابونو دا حواله را اخيستي چې دې منافق دا اعتراض كړي دلته لفظ د علم دي : والله ما اعلم الا ما علمني الله .

دريم روايت سنن الدارمي ذكر كړي جلد ٢ صفحه ١٧٠ باب في رؤية الرب تبارك وتعالى في النوم . په خوب كې د خداى تعالى ديدار كيدې شي او كه نه ؟

اخبرنا محمد بن المبارك حدثني ابوالوليد حدثني ابن جابر عن خالد بن اللجلاج وسأله مكحول ان يحدثه قال سمعت عبد الرحمن بن عائش يقول سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول رأيت ربي في أحسن صورة .

داد متشابهاتو نه دي .

قال فيم يختصم الملأ الأعلى . ما ته يې وفرمايل ملأ الاعلى په څه كې جګړه كوي .

فقلت انت اعلم يا رب . ما ورته وويل اى ربه تا ته علم دي .

قال فوضع كفه بين كتفي . كف بلا كيف يې د دواړو اوږو مينځ زما كې وضعه كړو .

فوجدت بردها بين ثديي . د هغې يخوالې مې د سينې مينځ كې بيامونده .

فعلمت ما في السموات والارض . علم مې راغې په هغه اشياء چې په اسمانونو كې وه او په هغو شيانو چې ځمكه كې وه اسمان او ځمكه كې چې څه وه په هغې مې علم راغې .

له دغه ځاى نه د كلي تفصيل استدلال بعضې حضرات كوي خو دا هغه كلي اجمالي دي على الانواع په ټولو انواعو د عالم باندې ده ته علم وركړې شو دې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تلاوت كړو دا ايات :

﴿وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ .

دا رنګې مونږ ښودلي وه ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته عجائبات د اسمانو او د ځمكو .

دا ايات يې ولې پيش كړو د استشهاد لپاره چې ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د اسمان او ځمكې د عجائبو علم خداى تعالى وركړې وه بعيده يې ګڼي انكار ترې كولې شي نه يې شي كولې نو دغه شان زما په علم كې ولې شک كوي چې هغه ته يې وركړو خو ما ته يې هم دا علم راكړو دا

ایات یې د دلیل د پاره پیش کړې دي.

د مسند ابي یعلي په روایت کې راځي جلد ۳ صفحه ۱۰۲:

فعلمتُ ما بین المشرق والمغرب. د مشرق او مغرب په مینځ کې چې څه وه په هغې مې علم راغې.

فقال. بیا یې ما ته وفرمایل:

یا محمد فیم یختصم الملأ الاعلی؟ قلت في الکفارات. کفارات څه شي دي.

المشي علی الاقدام في الجمعات واسباغ الوضوء في المکروهات وانتظار الصلواة بعد الصلواة الی الصلواة فمن حافظ علیهن عاش بخیر ومات بخیر وکان من ذنوبه کیوم ولدته امه.

جګړه په دې باندې کوي چې کوم سړي د جمعې لمونځ ته قدمونه ږدي د دې قدم چې کوم اجر دي ملأ اعلی چې کمې فرشتې دي جګړه یې وي یو وایي دا زه د قبول ځای ته وړم بله وایي زه یې وړمه او دارنګې اسباغ الوضوء في المکروهات په سخت ژمي کې هغه طولاني اودس کوي چې سم پوره اودس وشي او کوم ځای پاتې نه شي او انتظار د صلواة بعد الصلواة الی الصلواة د دې چې کوم اجر دي یو مونځ نه بعد بل مونځ ته سړي انتظار کوي:

فمن حافظ علیهن عاش بخیر ومات بخیر. په دې درې کارونو چې څوک محافظت وکړي او همیش یې وکړي.

عاش بخیر ومات بخیر وکان من ذنوبه کیوم ولدته امه.

داسې به پاک شي نو دغه وخت پورې فیم یختصم الملأ الاعلی. علم ورته نه وه چې د هغوي فرشتو په څه شي کې جګړه ده او چې کله دغه علم ورکړې شو نو بیا ترې تپوس وشو نو متصل علم ورته پیدا شو بیا یې د هغې اظهار وکړو.

دا حدیث تفسیر ابن جریر د طبري جلد ۷ صفحه ۲۴۷ کې را اخیستي، ابن کثیر جلد ۴ صفحه ۲۵۱، مجمع الزوائد جلد ۷ صفحه ۱۷۶، مسند احمد جلد ۱ صفحه ۳۶۸، مسند شامیین جلد صفحه ۳۴۵، مسند ابي یعلی جلد ۴ صفحه ۴۷۵، الاحاد و المثاني جلد ۵ صفحه ۴۹، مسند عبد ابن حمید جلد ۱ صفحه ۲۲۸، تمهید د ابن عبد البر جلد ۲۴ صفحه

۳۲۳، تذکرة الحفاظ جلد ۱ صفحه ۳۸۷، طبقاة المحدثین باصبهان جلد ۳ صفحه ۴۶۳، معجم الصحابة جلد ۲ صفحه ۱۰۲ دي، تولو کتبو دا حدیث په مذکورو حوالو ذکر کړې دي.

ددې روایت حوالې مې ځکه زیاتي ذکر کړي چې دا زمونږ په دعوی دال دي چې:

فعلمت ما في السموات والارض.

لفظ د علم استعمال شوې اسمان او ځمکه کې چې څه وه زما پرې علم راغې.

دا رنګې صحیح مسلم معرب بیروت چاپ جلد ۷ صفحه ۹۴ پاکستان چاپ جلد ۲ صفحه ۲۶۳ جوړېږي خپل سند سره د حضرت انس ابن مالک رضي الله عنه روایت دي:

ان رسول الله صلی الله علیه وسلم خرج حین زاغت الشمس. زوال نه بعد.

فصل لهم صلواة الظهر فلما سلم قام على المنبر فذكر الساعة ذكر ان قبلها اموراً عظاماً ثم

قال من احب ان يسألني عن شيء فليسألني عنه.

د چا چې خوښه وي ما نه څه تپوس کوي ودې کړي.

فوالله لا تسألونني عن شيء الا أخبرتكم به ما دمتُ في مقامي هذا.

قسم بالله تپوس به نه کوي مګر خبر به درکوم ترڅو چې په دغه ځای باندې یم.

دا روایت دلائل النبوة د اخبار عن الغیب کې محدثین پیش کوي نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته دغه وخت کې تر قیامته پورې اشیاء کشف شول او چیلنج یې ورکړو چې ثوک څه قسم تپوسونه ما نه کوي نو وي کړي.

دا رنګې صحیح مسلم بیروت چاپ جلد ۵ صفحه ۱۴۵ د پاکستان چاپ جلد ۲ صفحه ۸۵ سره موافقت لري دغه علم چې دوي ته ورکول کیږي کله په تلقي بالقلب سره وي کله منامات وي کله فراست وي کله په زړه کې القاء الهام وي کله کشف د سترګو وي کله د غوږونو د سماع د بعید نه وي کله د لاس په مس سره وي لاس ورورې پته ورته ولږېږي دا کیږي دا تر خاصې تر انبیاء نه وي چې هغوي پورې خاص وي خواصو عبادو د اولیاء ته اوس هم کیږي.

## زمونږ د والد ګرامي کورني واقعه :

زمونږ والد ګرامي ته دا فراست او کشف دي چې هغه په لمس د يد سره هغه وايي زه نه پوهيږمه خو چې د چا لاس راکړو او دري خبري د خولې نه رابهر شوې ۲۴ ساعتو کې چې ترې څه ګناه شوې وي هغه زما مخې ته راشي چې دې سړي دا ګناه کړې ده دې وخت کې هم دا خلک شته دي خو دا ټول هغه څه دي چې د اولياء د تصوف د خلکو سره ملاويږي دا په کافيه، جامي او منطقو کې نشته چې ته يې هلته لټوې.

حضرت ابو هريره رضي الله عنه راوي دي نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايي :

**غزا نبي من الانبياء** . يو پيغمبر عليه السلام غزا ته روان دي.

**فقال:** وي فرمايل، غالباً سليمان عليه السلام وه.

**لقومه** . قوم خپل ته.

**لا يتبعني رجل** . ما پسې به نه راځئ هغه سړي.

**قد ملك بضع امرأة وهو يريد ان يبني بها** . مالک د بُضع ذ امرء دي واده يې لا نه دي کړي کوژدن شوې ده د بنا اراده لري.

**ولما يبن** . تر اوسه پورې بناء نه وي کړي يعنې چې کوژدن يې کړې وي واده يې نه وي کړي هغه دې ما پسې نه راځي دا ولې جهاد ته بوتلل يې ناروا نه وي دا ډير بې غيرته وي چا چې کوژدن نه وي کړي دا په غيرت کې اول نمبر دي دويم هغه څوک چې واده يې کړې وي او څه وخت يې وتلې وي.

دا کوژدن يې چې شوې وي او واده يې نه وي کړي دا ګوري جهاد ته بو نه ځي دا تجربه مونږ کړي ده د طالبانو امارت کې مونږ ابتدائي ايامو کې چهار آسياب ته تللي وو مونږ سره هم په کې يو تللي وه نو چې کله مونږ تعارض ته تللو نو دومره سوالونه يې ما ته کړي دي وايي مولوي صاحب د خداى لحاظ وکړه ګوره کوژدن مې کړي او واده مې نه دي کړي نو هغه کال زما د لوي دوري وه نو دا حديث ما ته راغې ما ويل دا وګوره پيغمبر عليه السلام فرمايي چې چا کوژدن کړې وي واده يې نه وي کړې ما پسې دې نه راځي هغه نه شي کولې دا

ځوانان چې واده یې نه وي کړي داد امر تابع وي چې ځه دي ورته وویل همغسې کوي ځکه دوي سره دا سوچ نه وي چې ما نه به ښځه او بچي پاتې شي.

ولا آخر قد بنى بنيانا ولما يرفع سقفها . او هغه سړي به راسره هم نه ځي چې آبادي یې روانه کړې وي چت یې پرې نه وي اچولې چې نیم زړه یې د کور سره وي.

ولا آخر قد اشترى غنماً او خلفاتٍ وهو منتظر ولادها . او هغه سړي به هم راسره نه ځي چا چې ګډان اخیستې وي او ښان یې اخیستې وي او هغه بلاربې وي او منتظر د اولاد د هغې وي چې دا به لنګیږي بیا روان شو غزا ته.

فأدنى للقرية حين صلاة العصر . هغه کلي ته ورغې د مازیګر د لمانځه وخت وه او یا قریب د هغې ته.

فقال للشمس انتِ مأمورة وانا مأمور . لمر ته مخاطب شو ورته وي ویل ته هم ماموریې په غروب باندې او زه هم ماموریم په جهاد باندې.

اللهم احبسها علي شيئاً . ما ته یې لږ حصار کړه چې دا غزا خلاصه شي ځکه مې مخکې وویل چې غالباً دا به سلیمان عَلَيْهِ السَّلَام وي چې معروف قول د هغه نه منقول دي چې لمر ورته را اعاده شوي وه یا خو هغه ته اعاده شوې وه ده ته محبوس شوې دي.

فحبست عليه . لمر ورته محبوس شو په ځای ورته ودرېدلو.

دا دده معجزه شوه عادت خدای تعالی خپل ورته مات کړ او خرق د عادت یې وکړو لمر یې په ځای ورته ودروه خالق درولې ده نه دي درولې خو دده په دعا او لاس باندې شوې دي دا دده معجزه شوه.

حتى فتح الله عليه قال فجمعوا ما غنموا . تر دې چې فتحه یې ورکړه ده لره الله په هغه باندې وي ویل راجمعه کړي څه مو چې نیولي دي هغه وخت کې خو چا مال غنیمت خوړلې نه شو دا خو دي امت لره جائز دي دا به یې راغونډ کړو د هوا نه به اور راغلو دا به یې وسوزول دا به دلیل د قبول د جهاد وه.

فاقبلت النار لتأكله . اور راغې چې دا وخوري.

فابت ان تطعمه . او راغې منع یې راوړه چې وخوري دا غنیمت وي نه خوري .

فقال فیکم غلول . دغه پیغمبر علیه السلام اعلان وکړو تاسو کې خیانت دي چا درکې خیانت کړې دي .

فلیبایعني من کل قبیلة رجل . هره قبیله کې یو سړي دي ما ته لاس راکړي .

فبایعوه . هغوي بیعت وکړو .

فلصقت ید رجل بیده . نښ شو لاس د یو کس دده د لاس سره .

فقال فیکم الغلول . تاسو کې دي خیانت د لاس نه ورته معلومه شوه ما درته وویل چې د کشف ډیرې لارې دي چې څنګه یې لاس ورکړو ورته معلومه شوه چې خیانت تا کړي دي یعنې ستاسو قبیلې والا کړې دي .

فلتبایعني قبیلتك . ستا ټوله قبیله به اوس بیعت راسره کوي اول یې دا مشران د قبیلو راغونډ کړي وه .

فبایعته قال فلصقت بید رجلین او ثلاثة فقال فیکم الغلول . تاسو کې خیانت دي .

انتم غللتم قال فاخرجوا له مثل رأس بقرة من ذهب . هغوي د غوایې د سر او مره سره زر پټ کړي وه ورته راوي ویستل .

قال فوضعوه في المال وهو بالصعید . میدان وه .

فاقبلت النار فاکلته .

زما دې ځای نه استدلال دي چې ګورئ دلته واسطه د جبرائیل علیه السلام نه ده بلکې دا په یوه بله طریقه دي غیبونه خدای تعالی علم ورکړو چې لمس د ید وه .

دارنګې صحیح مسلم بیروت چاپ جلد ۸ صفحه ۱۷۱ پاکستان چاپ جلد ۲ صفحه ۳۹۰ سره سمون خوري :

عن ابي اسماء عن ثوبان قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم إن الله زوی لي الارض فرأیت مشارقها ومغاربها .

يقيناً خداى پاک را غونډه کړه ما ته ځمکه نو د ځمکې مشرق او مغرب مې وليدل.

و ان امتي سيبلغ ملكها ما زُوِيَ لي منها. چې څومره ځمکه ما ته راغونډه وه زما امتيان به دغې ته رسيږي.

دا رنګې صحيح المسلم جلد ٨ صفحه ١٧٧ پاکستان چاپ جلد ٢ صفحه ٣٩٢ جوړيږي:
دجال د زمانې قصه نبي عليه السلام فرمايي دغه وخت کې مقابلې د دجال ته:

فيبعثون عشرة فوارس طليعةً. لس (١٠) آسونو والا يوه ډله به را پورته شي.

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اني لاعرف أسماء هم وأسماء آبائهم.

زه پيژنمه نومونه د هغوي نومونه د پلارانو د هغوي.

والوان خيولهم. او رنګونه د آسونو د هغوي.

دا نوم خو به ورته په وحي ووېيل شي خو دا رنګ د اس دليل د دې دي چې ده ته کشف شوې وه دا صحنه ټوله پيش شوې وه ده ته.

هم خير فوارس على ظهر الارض يومئذٍ او من خير فوارس على ظهر الارض يومئذٍ.
دغه وخت کې به په مخ د ځمکه باندې غوره مجاهدين د آسونو والا دغه وي.
دا رنګې صحيح مسلم جلد ٨ صفحه ١٦٣ پاکستان چاپ جلد ٢ صفحه ١٠٢، د بدر ميدان د جنګ نه مخکې.

ثم انشأ يحدثنا عن اهل بدرٍ. راوي وايي موږ ته هغه صحابي د بدر واقعه بيانوله.

فقال إن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يرينا مصارع أهل بدر.

راښودل موږ ته هغه ځاى د راغورزيدو د اهل بدر.

بالامس. يېګا د شپې راوښودل چې ابو جهل به صبا دلته پروت وي، عتبه به دلته پروت وي او شيبه به دلته پروت وي.

يقول هذا مصرع فلان غداً ان شاء الله. ځاى د پريوتو د فلاني به صبا دغه وي ان شاء الله.

قال فقال عمر فوالذي بعثه بالحق ما اخطئوا الحدود التي حد رسول الله ﷺ. هيڅ خطاء نه شول هغه حدود چې نبي علیه السلام پرې كرخي رابنكلې وي همغه ځاى كې پراته وو صبا ته.

دارنگې صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۳۲، اسماء بي بي فرمايي زه راغلم.

فاذا الناس قيام. خلك ولاړ وه.

فقالت سبحان الله قلت آية. ما عائشې بي بي ته وويل آيا څه نشانه يا خبره ده.

فاشارت برأسها اى نعم فقمت. زه هم ودريدم داد صلواة كسوف مونځ دي ډير اوږد وه.

حتى تجلاني الغشي. په ما غشي غالبه شوه.

فجعلت اصب على رأسي الماء. په سر مې اوبه اچولې ما تاسو ته ويلي وه چې د اسماء بي بي غشي په بخاري كې په وسط د مانځه كې ثابته ده هغه دا روايت دي دوي د اسماء بي بي په رد د غشي كې پيش كوي چې دې استعاذه ويلي وه دې باندې خپله هم غشي راغلي ده.

فحمد الله عزوجل النبي ﷺ واثنى عليه ثم قال ما من شيء لم اكن أريته. نه وه يو شي چې ما ليدلي نه وه.

الا رأيته في مقامي. مگر دغه ځاى كې هغه ما وليدل.

حتى الجنة والنار. جنت او جهنم مې وليدل.

نو دا نبي اكرم ﷺ ته كشف تام د جنت او جهنم دغه ځاى كې شوې دي.

دارنگې صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۱۲۲، وروسته وخت كې د چا د مرگ قصه داد غيبو خبر دي داد نبي علیه السلام صحابوو ته د غيبو علل بنودلي دي.

فقال كنا نحمل لبنة لبنة وعمار لبنتين لبنتين فراه النبي ﷺ. وليده نبي علیه السلام هغه لره.

فينفض التراب عنه. خاوري ترې وڅنډلي.

ويقول ويح عمار تقتله الفئة الباغية. وژني به ده لره يوه ډله د باغيانو.

نو هغه علت د مرګ يې ورته بيان کړو چې دې به کله مري او څه مسئله کې به مري او د چا د لاسه به مري هغه يې بيان کړو.

دارنګې صحيح البخاري بيروت چاپ جلد ۵ صفحه ۱۸۲، موتی غزوه ته نبي اکرم صلی الله علیه وسلم صحابه ليږلي وه په دغه ځای کې مختصر تفصيل ياد کړي:

خمس لا يعلمهن الا الله. چې هغې ته مفاتيح الغيب ويلې کيږي داد مفاتيحو د غيب نه دي لا يعلم الا هو.

دغه ځای کې د عبد الله ابن مسعود او د محققينو رايه داده چې دا خمس مختص دي بذات الله تعالى او بعضې مفسرين په دغې کې فقط د قيامت علم مختص ګڼي تر ذات الله او دې نه اخوا دا څلور چې دي نو په هغې کې څه تاويلات ذکر کوي.

يو ذهغې نه ماذا تكسب غدا ياد وي چې په طريقې تامې تفصيلي سره چا ته نشته دي او بعضې مغيبات خالق ورکوي بعضو له يو د هغې نه:

لا تدري نفس بأي أرض تموت. نه پوهيږي نفس چې په کومه ځمکه به دې مري.

نو دې ځای کې تاويل دادی چې يو بأي أرض تموت دي بل بأي أرض تدفن دي بل بأي أزمنة تموت دي بل بأي علة تموت دي بأي أرض تموت دا خاصه د باري تعالى ده د جمهورو په نزد بعضې علماء لکه امام طحاوي رحمه الله د احنافو نه هغه وايي چې نه دا خاصه د خدای تعالى نه ده خپل تعليم باندې عبادو ته ورکوي او نبي علیه السلام ته يې د دې علم ورکړې وه چې ته به چيرته وفات کيږې داد هغه رايه ده.

خو جمهور وايي چې نه بأي علة تموت دا خاصه نه ده نبي علیه السلام حضرت عمار رضي الله عنه ته وويل چې باغيان به دې وژني دا علت د مرګ وه.

بأي أزمنة تموت. په کوم وخت کې به مري دا خاصه نه ده ډير خواصو ته د دې علم ورکول کيږي چې ته به دغه وخت کې مري او بأي أرض تدفن په کوم ځای کې به دفن کيږې دا خاصه نه ده نبي علیه السلام فرمايي:

ما بين بيتي ومنبري روضة من رياض الجنة. زما د کوټې او منبر په مينځ کې رياض

الجنة ده .

دويم حديث کې فرمايي :

مابين منبري و قبري روضة من رياض الجنة . زما د منبر او د قبر په مينځ کې رياض الجنة دي .

تطبيق يې دا دی چې نبي عليه السلام ته معلومه وه چې زما کوټه به زما قبر جوړيږي يو معنی ده نو دغه علم ده ته ورکول شوي وه چې ته به دغه کوټه کې دفن کيږي ځکه يې مخکې د هغې نه تعبير په دې سره کړې چې مابين منبري وقبري ومابين منبري وبيتي ، زما د کوټې او منبر مينځ کې رياض الجنة دي او زما د قبر او د منبر مينځ کې رياض الجنة دي .

مخکې يې له دې نه د قبر تعبير کړې دي نو بأي علة تموت دا خاصه نه ده بأي أزمنة تموت دا خاصه نه ده بأي أرض تدفن دا هم خاصه نه ده ، ګوره نبي عليه السلام ته علم ورکول شو چې دا کوټه ستا مقبره ده او دغه شان حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه دري ورځې مخکې ودريدلو جنت البقيع کې او دغه ځای ته ودريدلو چې کوم ځای کې دفن دي وايي په دې ځای کې :

لعله يدفن في هذا الموضع رجل صالح . دلته به يو ښه سړي دفن شي ، دري ورځې بعد دې په کې دفن شو .

بأي أرض تدفن دا هم ورکول کيږي بأي أرض تموت محققين وايي چې دغه خاصه ده چيرته به مري دا نه ورکول کيږي او ريشتيا نه معلوميږي چې د سړي ساه به چيرته خيژي خو دې کې د محققينو دغه رايه ده او د اکثرينو دغه رايه ده خپله طحاوي رحمه الله مشکل الاثار عبارت به زه تاسو ته وروسته ذکر کړم هغه وايي چې دغه علم هم نبي عليه السلام ته ورکړې شوي وه .

بل يعلم ما في الأرحام . خدای تعالی علم لري په هغه څه چې په رحمونو کې دي نو په دې کې تفصيل دا دی چې ما في الارحام هغه وخت کې چې دوي کې ساه وا چولې شي نو هغه بيا ما في الارحام نه وي من في الارحام وي د څلورو مياشتو نه بعد دا خاصه د باري تعالی نه ده

ځلورو میاشتو نه مخکې چې عبارت د هغې نه په ما سره کیږي دا خاصه د باري تعالی ده په نزد د اکثرینو محققینو باندې.

د حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه چې هغه خپلې لور حضرت عائشې رضي الله عنها ته ویلي وه چې دا مال بیا تقسیم کړه په دوه وررونو او دوه خویندو باندې هغې ورته وویل وررور مې محمد دي او عبدالرحمن دي او خور مې یوه ده چې اسماء بي بۍ ده دوه خویندي کوم دي نو صدیق اکبر رضي الله عنه ورته فرمایي زما هغه بله بي بي چې حامله ده د هغې لور پیدا کیږي هغه درته یادوم، وروسته به عبارت راشي.

نو اوس که څوک اعتراض کوي چې دا نه منمه ځکه دا خو مخالف شو د نص، قرآن مخالف نه دي دغه وخت کې دغه جیني د ځلورو میاشتو نه غټه وه دا ما في الارحام نه وه من في الارحام وه او د من في الارحام علم خو نن صبا دا ډاکټران پرې پوهیږي دا ټستونه چې کوي معائنه وکړي بیا تا ته وایي چې هلک دي یا جیني دا خو د قادیانانو اعتراض دي.

قادیاني دا اعتراض کوي په قرآن کریم چې العیاذ بالله دې کې دروغ راغلي دي یو دغه اعتراض کوي قادیانیان وایي چې قرآن کریم وایي چې علم ددې خدای تعالی سره دي او نن صبا ډاکټران پرې پوهیږي.

نو د هغې جواب به دا وي چې یعلم ما في الارحام کې ما د غیر ذوي عقلو د پاره دي ځلورو میاشتو پورې ساه ورکې نشته غیر ذي علم دي کله چې ده ته ساه واچول شوه دا من في الارحام شو بیا او یعلم من في الارحام دا خاصه نه ده ذکر شوې ما في الارحام خاصه ده ځلورو میاشتو نه بعد ده کې ساه واچول شوه دا من في الارحام وګرځیده.

یو قادیاني چا راوستلي وه هغه هم دا خبره وکړه ما همدا جواب ورته وکړو ما ورته وویل ته په دې څه پوهیږي ته خو جاهل یې دا ما وایي من نه وایي ما في الاحام ما ورته وویل د ځلورو میاشتو پورې معلومات کولې شي د دنیا ډاکټران دې خواري وکړي یعلم ما في الارحام ځلورو میاشتو پورې د نر او ښځې بیلیدل نه کیږي.

هغه بیا یو بل اعتراض وکړو وایي دا نطفه مخکې په پیاله کې اچوي بیا یې ورې هلته یې ټیسټ کوي او وایي چې دا د نر نطفه ده دا د ښځې نطفه ده یعنې که دا رحم ته لاړه نر ترې

پيدا کيږي يا ښځه ترې پيدا کيږي مخکې نه ورته معلومات کيږي وايي هغې سره څه کوي ما ورته وويل بيا هم په قرآن کريم ايراد او اعتراض نشته دي ځکه دا ډاکتران پوه شول په يعلم ما في الفيالي (پيالي) باندې او خدای تعالی عالم دي په يعلم ما في الارحام باندې نر دې شي دا نطفه چې رحم ته ولوېږي بيا دې څلورو مياشتو پورې معلومه کړي واي بيا خوېې معلومات نه کيږي چې کله رحم ته لاړه او د هغې مشيمه پرې راغله بيا تر څلورو مياشتو د دنيا يو ډاکټريې هم نر او ښځه نه شي بيلولې او څلورو نه اخوا چې بيليږي دا من في الارحام دي ما في الارحام نه دي نو چې هر کله انګريز جوړه کړي آله باندې د هغې کشف کيدې شي نو خالق خاصو عبادو ته د هغې کشف څنګه نه شي ورکولې.

او د قرآن کريم سره يې ټکراو هم نه راځي غلطه ترجمه مه کوي بيا به دربانديې دا سياسي خلک او ډاکټران اعتراض نه کوي دا ډاکټران او تعليم يافته خلک زمونږ د غلطو عقيدو ته رسيدلي دوي د پاره يو بل قسم ليټري چرې رواني دي دعاء شته د عاء نشته دي دي طالبانو لپاره انګريزانو راويستلي دي د وهابيانو په خولو باندې دا خو زمونږ او ستاسې دې سره تعلق دي غټ ډاکټران او غټ افسران هغوي ته چې کوم شبهات په ليټروچرو کې برطانيه دلته اسلامي لباس کې را دننه کوي هغه څه بل قسم اعتراضات دي هغه ورته دا شيان مخې ته کوي وګورئ قرآن کريم کې دروغ راغلل دا او هغه په داسې څيزونو يې د هغوي دا ذهن له قرآن کريم نه اړوي بل دين ته يې جوړوي.

دا ډاکټر مسعود څوک بې دينه پاکستان کې دي دده داسې نظريه ده چې هغه دين چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ راوړي دي دې زمانې سره نه لږيږي مونږ به يو جديد دين دنيا ته خلکو ته ښايو او دا جماعت اسلامي د پاکستان چې دې دا هم څه بل قسم دين جوړول غواړي هغه دين چې پخواني دي دوئ وايي هغه به خپلې زمانې سره لږوي د جماعت اسلامي نوي ايجاد چې وشو نو علامه اقبال هغه وخت کې ژوندي وه او ابوالاعلی مودودي دا کالجيان او کم عمره هلکان ځان سره کړي وه دلته جلسه هلته جلوس دا شيان شروع ويل.

نو بيا کالجيان لاړل او علامه اقبال ته کيناستل وايي چې عالم خو هغه عالم وي چې دا دين د خپلې زمانې سره لږوي او مونږ ته مودودي دا تعليم راکوي چې بايد خپلې زمانې سره مونږ دا دين ولږوو تاسو هغه پخواني دين په دې وخت کې نافذوي دا در سره کله کافر مني

وايي علامه اقبال سر تيټ کړ و سريي را اوچت کړو دا کشران هلکان وه وايي څه مقصد مو دی وايي مقصد مو دادی چې ته ولې دا فيصله کوې علامه اقبال د مخلوط تعليم سخت مخالف وه چې هلکان او جينکي دې ګډ تعليم وکړي علامه اقبال به په سرکاري سطحه ددې مخالفت کولو نو دغو هلکانو ورته وويل چې ته د هغه زمانې دين مه راوله دې زمانې کې باک نه کوي چې هلکان او جينکي دې يو ځای کلاس کې ناست وي .

نو علامه اقبال ورته وويل چې بنه دا دين د خپلې زمانې سره ولړوم وايي چې هاو وايي چې بنه خپلې زمانې سره يې ولړوم نو په کار داده چې تاسو هلکانو ته هم برقې درواچوم ددې معنی دا شوه دين د خپلې زمانې سره لړول خو دې ته نه وايي چې وايې ورسستې کړه هلکان او جينکي يو ځای کينوه چې څه سره کوي دين د خپلې زمانې سره لړول خو دا معنی ده چې دا خبرې او دا قوانين سخت کړه کلک يې کړه هغه وخت کې چې څه ناڅه مسجد ته خلک تللې وي تعليم ته تللې وي هغه وخت کې دومره عياشي نه وه اوس دې زمانه کې سخت کړه دا قوانين مه پرېږده دا وايي چې دين د خپلې زمانې سره لړوم نو کالجيانو هلکانو ته به هم برقې ورپه سر کړم ځکه دا سپين سپين هلکان دي که دا بغير د برقو ځي نو دا به چيرته نور هلکان پرې اخته شي تول يې وايي په شرمونو وشرمول نو دا مودودي جماعت پاکستان کې چې دي بل شان دين راوستل غواړي پاکستان کې .

موتي غزی هغه مذکوره صفحه باندې نبي اکرم ﷺ حضرت زيد حضرت جعفر عبدالله بن رواحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مامور کړل دې هريوه ته يې وويل که دا شهيد شو نو دا به امير وي که دا شهيد شو نو اول يې حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاکلي وه وايي که دا شهيد شو حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به امير وي او که دا شهيد شو نو عبدالله بن رواحة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به امير وي .

کتاب المغازي ليکلي وايي چې کله دوي تلل نو کورونو ته لاړل او پخه مخه بنه يې واخيسته او بي بيانو ته يې وويل چې نبي اکرم ﷺ په يو جهاد کې هم امير سره دا نه دي ويلې که دا شهيد شو نو دا دې امير وي نو هغه چې دا اشکاره کړي مونږ بيا نه راځو زمونږ او ستاسو ملاقات به ورځ د قيامت کې کيږي پخې اجازې يې ورواخيستې د نبي اکرم ﷺ هغه خبره باندې ددوي پوره يقين وه چې ده وويل همد عسرې کيږئ دومره د هغوي يقين وه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خبرو تصديق يې وکړو .

د بخاري شریف واقعه ده خیبر ته روان وه په لاره باندې وایي څوک نشته ده چې څه اشعار ووایي چې دا خلک را ګرم شي جزباتو کې شي نو یو صاحب راغې هغه اشعار شروع کړل ډیر خوندور اشعار بخاري را اخیستي دي نبي اکرم صلی الله علیه وسلم و فرمایل :

رحمه الله. خدای تعالی دې پرې ورحمیږي .

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه فرمایي : کاشکې دا الفاظ یې دلته نه وای ویلي او دا کس به باقي پاتې وای مونږ ته به یې نا اشنا اشعار ویلي په غزواتو کې ولي صحابه وو ته پته وه چې نبي علیه السلام به مخکې د چا باره کې رحمه الله هغه به شهید کیدلو .

دې غزی کې همغه شاعر وه چې لاړ بیا شهید شو په خیبر کې د بخاري واقعه ده نبي اکرم صلی الله علیه وسلم چې څنګه اشعار واوریدل وایي رحمه الله ، نو دا اشاره ده، ده ته څه کشوف او حالات کشف کیدل د خپل امت او د صحابه وو نو چې کله هلته غزوي ته هغوي لاړي نو حضرت زید رضي الله عنه جنډا لاس کې ونیوله جهاد شروع شو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د خپل کور نه رابهر شو دې مبارک خپله تللي نه وه دې مینځ کې ډیره فاصله وه دې مدینه منوره کې وه را بهر شو او په منبر باندې کیناستلو او صحابه کرام چې څوک پاتې وه په مسجد نبوي کې یې راغونډ کړل مبارک وفرمایل چې :

**أخذ الراية زيد فأصيب . ثم أخذها جعفر فأصيب . ثم أخذها عبدالله بن رواحة فأصيب .** جنډا حضرت زید لاس کې ونیوله شهید شو ، بیا حضرت رواحة ونیوله شهید شو .

**وعيناه تذرفان .** سترګو مبارکو نه یې اوښکي رواني وي او ژړل یې .

**حتى أخذ الراية سيف من سيوف الله.** جنډا د خدای تعالی د تورو نه یو توري اوچته کړه .

**حتى فتح الله عليهم .** فتحه پرې راغله .

صحابه حیران وه چې دا به اوس څوک وي چې څنګه هغوي راورسیدل البداية والنهاية دا واقعه را اخلي وایي هغه یو په دوي کې مخې ته راغې او نبي علیه السلام ته عرض کوي چې زه به تاته واقعه بیان کړمه .

رحمت عالم صلی الله علیه وسلم ورته فرمایي ته یې بیانوي که زه یې درته بیان کړمه وایي تاسو یې بیان کړي نبي علیه السلام ټوله قصه ورته بیان کړه نو هغه ورته قسم خوري داسې دي

بیان کړه لکه ته چې مونږ سره وي هیڅ هم نور نه دي پاتې شوې همد غسې شوې وه او بیا صحابه کرامو زر زر پوښتنې وکړي چې دا څلور مه جنډه چا اوچته کړه هغوي ورته وویل چې خالد ابن ولید رضي الله عنه .

نو کومو احادیثو کې چې دلته راغلي دي چې اخذ الرایة خالد بن ولید هغه روایت بالمعنی شوې دي اصل کې نبي علیه السلام سیف من سیوف الله ویلي وه نو هغه خالد بن ولید وه نو چا د هغه نه تعبیر په دې سره کړي دي دا هغه کشف وه ده ته چې مدینې منورې کې ورته د غزوه موتی کشف ورته وشو او دې ځای کې مؤرخین دا هم را اخلي چې نبي علیه السلام دا وفرمایل چې اخذ الرایة زید وړاندې شو بیا مخې ته لاړ چې مخې ته لاړ وایي شیطان ورته راغې او ورته وایي چې مړ کیږي ده د هغه هیڅ لحاظ ونه ساته پرې ورغې شهید شو د جنت دننه کیدو کې هم هیڅ سستي رانه غله .

حضرت جعفر رضي الله عنه چې جنډه واخیسته شیطان ورته راغې ورته وویل چې شهید کیږې دا دنیا یې ورته رایاده کړه هغه ورته التفات ونه کړو ورمخکې شو نو شهید شو جنت ته لاړو او په جنت کې الوځي دا طیار چې ورته وایي دغه وخت کې نبي علیه السلام ترې تعبیر کړي وه او حضرت عبد الله بن رواحة ته چې شیطان راغې لږ خپه نیولي شو بیا واپس شیطان ته یې التفات ونه کړو وي رټلو ورمخکې شو شهید شو د جنت په ننوتلو کې هم لږ وروسته شو انصارو باندې .

دا الفاظ بنه هم نه وه لګیدلي په دې ځای کې ځکه عبد الله بن رواحة رضي الله عنه انصاري وه او دا دوه صحابه کرام مهاجرین وه چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ده باره کې ولې داسې وویل تاسو دې ته سوچ وکړي چې هغه میدان کې څه دا خو دا صحنه ورته ټوله کشف شوله دغه وخت کې شیطان هم ولیده شیطان خو دننه زړه ته بیا راځي د وسوسې زړه ته راځي حضرت زید ته زړه کې وسوسه کوي هغه هم نبي علیه السلام ته کشف شوه بیا حضرت زید رضي الله عنه هغه ته جواب ورکوي رټي دا شیطان او مخکې کیږي هغه هم کشف شوه او چې بیا شهید شو او متصل جنت ته داخل شو هغه هم کشف شو بیا دغه شان حضرت جعفر بیا دغه شان حضرت عبد الله بن رواحة رضي الله عنه دا دلیل دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته کشوف وه او څه علوم وه چې خدای تعالی ورکړې وه عامو خلکو ته په هغه انداز نه وه .

دا رنګي صحیح البخاري جلد ۴ صفحه ۹۱ عبد الله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي:

كان على ثقل النبي صلى الله عليه وسلم رجل يقال له كركرة.

د نبي عليه السلام په بار باندې يو سړي مقرر وه كركرة نوميدلو.

فمات. مړ شو.

فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم هو في النار فذهبوا ينظرون اليه فوجدوا عباءة قد غلها. يوه شړي يا كمبل هغه ده غلول په هغې كې كړي وه.

نو دا مخكې نه نبي عليه السلام د هغې اخبار وركړو هغه ته پته وه چې دې به په كوم حال وي خو دا دليل د كفر خو نه شو كنه.

دې نه بعد به بعضې علوم دوي به وايي چې هغه وخت كې وه د وفات نه بعد ورته نشته دي.

فتوح الشام جلد ۱ صفحه ۷۲، د دمشق فتحه وه او د دمشق په پنځه دروازو باندې صحابه كرام ډلې ډلې پراته وه يوه دروازه باندې ابو عبيدة ابن الجراح، ابو هريرة رضي الله عنه دده لښكر كې د غه ځاى كې وه دا ډيره طولاني واقعه ده دې واقعه ذكر كوي:

إن ابا عبيدة رأى في منامه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول له. صبا ته چې دمشق فتحه كيږي ابو عبيده خوب ګوري نبي اكرم صلى الله عليه وسلم ورته خوب كې فرمايي:

تفتح المدينة إن شاء الله تعالى في هذه الليلة. بيګا ته به دا ښار فتحه شي.

فقلت يا رسول الله اراك على عجل. ما ته جلتي كې ښكاريږي.

قال. نبي عليه السلام ورته فرمايي.

لأحضر جنازة ابي بكر ن الصديق. جلتي ځكه كوم چې د حضرت ابو بكر صديق رضي الله عنه جنازه كې حاضر شمه.

قال فاستيقظت من المنام. د خوب نه بيدار شومه ګوري دا خوب د صحابي دي او ليدلي يې نبي عليه السلام دي:

من رأني في المنام فقد رأى الحق ان الشيطان لا يتمثل بي. که ته خوب کې نبي اکرم ﷺ وګورئ نو شیطان په هغې شکل نه شي راتللې.

خو دې کې د علماو اختلاف دي چې: شکل مدفون في المدينة المنورة المذکور في الشمائل. دغه شکل کې نه شي راتللې که بالکل ويلې نه شي بعضې علماء وايي شکل مخصوص کې نه شي راتلي او بعضې وايي بالکلية ويلي نه شي داسې چې زه پيغمبر يمه بهر حال يو اختلاف خو شته دي که ته خوب کې نبي عليه السلام وګورئ که د هغه علماء قول مراد وي چې شکل مخصوص مراد دي:

نو ستا خوب کې خو شبهه راغلله چې کيدې شي تا په شکل مخصوص نه وي کتلې اوس ابو عبيده رضي الله عنه چې نبي عليه السلام خوب کې وګورئ نو هغه خو شکل مخصوص پيژني کنه د هغه خو ملاقات شوې دي هغې کې دا شبهه هم ختمه شوه ته چې خوب وګوري ما ته يې بيان کړي يو ه بله شبهه ده کيدې شي تا دروغ ويلي وي هسې ما ته شيخي ثابتوي.

اوس خوب حضرت ابو عبيدة رضي الله عنه ليدلي:

الصحابة كلهم عدول، دروغ نه وايي دا شبهه هم ختمه شوه نو صحابي په خوب کې د محمد مصطفى ﷺ کتل دا قوت لري لکه څنګه چې په ويبنه باندې د رحمت عالم د زبان حديث در ته پيش کړي دو مره زور لري نو دا دی څوک نه وايي چې دا د خوب قصه ده خوب دې خو خوب د حضرت ابو عبيدة رضي الله عنه دي او په خوب کې محمدِ عربي ﷺ ليدل شوې دي په دې کې هيڅ قسم شبهه نور نه پيدا کيږي هغه ور ته عرض کوي:

لأحضر جنازة ابي بكر الصديق رضي الله عنه. نو يو د صحابه وو علم ور کول شو چې د مشق کې دوي په غزا لګيا دي صبا ته چې کومه فتحه کيږئ د هغې نه يې مخکې خبر ورکړو او دغه شان جنازې د ابوبکر الصديق رضي الله عنه کې حاضري وکړه.

لأحضر لفظ ته متوجهې شي د نبي اکرم ﷺ څه حضور ثابتيږي خو دا حضور ذاتي نه دي بلکې روح يا مثل د روح دي دا د محققينو قول دي نبي عليه السلام حاضر دي او ناظر دي دا يوه لانجمنه مسئله ده او بريلويانو ډير زور هم دې مسئلې ته ورکړې دي او بعضې علماء ترې چټ انکار کوي بالکل چې د هغه روح د حضور قول دې وکړو هم کافر کوي دې نو

هغسې مه کوه ځکه :

**لأحضر جنازة أبي بكر الصديق**. د صديق اکبر رضي الله عنه جنازه کې د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم حضور په دې روايت ثابت دې .

دارنګې المستدرك على الصحيحين للحاكم جلد ۴ صفحه ۲۰ :

**اخبرني ابوالقاسم الحسن بن محمد السكوني بالكوفة حدثنا محمد بن عبدالله الحضرمي حدثنا ابوكريب حدثنا ابوخالد الاحمر حدثني رزين حدثتني سلمیٰ قال دخلت على ام سلمة وهي تبكي**.

حضرت سلمى رضي الله عنها فرمايي ام سلمة رضي الله عنها ته ورغلم هغې ژړل دا هغه ورځ ده په کربلا کې د حضرت حسين رضي الله عنه شهادت شوې دې زه ورغلم دا په ژړا وه .

**فقلت ما يبكيك**. ما ورته وويل څه شي دې ژړوي .

**قالت رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم في المنام يبكي**. نبي عليه السلام مې په خوب کې وليدلو ژړل يې .

**وعلى رأسه ولحيته التراب**. په سر او ږيره مبارکه يې خاورې وې ګرد جن وه .

**فقلت مالك يا رسول الله صلى الله عليه وسلم**. څه در باندې شوې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم.

**قال شهدت قتل الحسين آنفاً**. د حضرت حسين رضي الله عنه قتل ځای ته حاضر شوې ومه .

اوس دا شهود دلته په کومه معنى اخلې دا هم همغه د حضور معنى ده چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم روح يا په مثل د روح بعضې مواضعو ته حاضري کولې شي او دلته د غلاطو بريلويانو له مونږ سره فرق شته هغه دا غلاط بريلويان دا وايي چې هر کور او هر سړي سره په دائمي استمراري طريقه باندې د نبي عليه السلام روح موجود دې هغوي داسې عقيده ساتي هغوي وايي هر کور هر ځای کې موجود دې همغه څه خبره کتبو را اخيستي ده خو دوي په هغه مينه کې ورننوتي دي خبره ترې بل ځای ته تللې ده افراط کوي نو نفس حضور نه انکار مه کوي د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم نفسِ حضور روحي په بعضې مواضعو کې چې خدای پاک وغواړي د خدای جل جلاله خوښه شي تللي شي او دا حضور بعد الوفات هم ثابت دې او دغه

لقاء د ژوندي له مړو سره په دې لوي دليل ملاقات د نبي عَلَيْهِ السَّلَام دي له انبياء سره په ليلة المعراج هغوي دنيا نه تللي وه دا ملاقات څنګه شوې وه ، دغه شان لقاء هم ورسره کيږي اولياء ورسره ملاويږي ستړي مشي کوي .

تفسير روح المعاني د ﴿ مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ ﴾ د دې په شرحه کې دا مسئله تفصيلي چيړلي ده او پوره تفصيل يې کړې دي هلته مراجعه وکړي او په هغې کې بيا د يو ولي الله حال را اخيستي دي وايي هغه وايي چې ۲۴ ګينټو کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د سترګو رپ قدرې ما نه پناه شي وايي زه په خپل ايمان ويريږم دومره دائمي ملاقات زه ورسره کومه او دغه شان د شيخ عبد القادر جيلاني رَحِمَهُ اللَّهُ واقعه يې را اخيستي ده چې بغداد کې دې په منبر کيناسته او رعب پرې راغې او نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وايي مخامخ راغې ما ته ودريدلو .

**افتح فاك يا بُنَي**. خوله دې خلاصه کړه وايي چې خوله مې خلاصه کړه (۷) ځل يې په خوله کې لاړې راکړې او بيا يې دا واقعه را اخيستي ده چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغې هغه ۶ ځل په خوله کې لاړې راکړې دا واقعه تفسير روح المعاني را اخيستي ده ، داد هغه کرامت شو دا ترې ثابتوي چې د انبياء اولياء ارواح تر قبره يا تر عليين محبوس نه دي جنت ته ځي د عرش لاندې سجده لږوي عليين کې وي روضې مبارکې او د قبر سره يې تعلق وي عامو مجالسو ته ددوي حضور په شکل د يو ذات باندې کيږي دا څه ممنوع نه دي دې کې بيا غلو افراط کول چې هر کور او هر سړي سره او هر وخت کې موجود دي دې باندې چا قول نه دي کړې چې هر سړي سره د نبي عَلَيْهِ السَّلَام روح دي د هيچا قول دا سې نشته سواد دغو غلاطو نه دوي به داسې قول کړې وي مخکې پرې چا نه دي کړې .

ما يو بريلي ته ويل چې ستاسو دا عقيده ده چې دې مجلس کې اوس نبي عَلَيْهِ السَّلَام موجود دي وايي هاو ما ورته ويل بيا ستاسو نه غټ بې ادبه بل څوک نشته دي ځکه :

﴿ لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ ﴾ ستاسو دا عقيده هم ده چې دلته موجود دي او چغې څومره ډيرې وهي دا خو غټ بې ادبه هم تاسې يې چې عقيده دې داده چې دلته موجود دي خو غلي شه ادب وکړه بيا چغې څه د پاره وهي څومره چغې بيا ددوي په مجالسو کې وي.

نو نه پوهيږم چې دوي د چا قول را اخيستي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په هر كور او هر ذات سره دي او هر سړي سره دي ته څه وايي نبي اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مونږ نه په دې خوشحال شي چې مونږ د هغه په شان كې مبالغه وكړه په دې نه خوشحاليږي هغه مبارك فرمايي حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته چې ستا په محبت كې به يو قوم ګمراه شي او ستا په عداوت كې به هم ګمراه شي.

نو داسې خلق شته چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په محبت كې ګمراه شوې ګوري هغه ډله به هم پيژني هغې ته به موسوچ وي چې هغه څوك دي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره مينه كوي او په مينه كې ګمراه شوې دي نو هغه دغه افراط والا دي چې زياتي كوي چې هغه د صراط مستقيم نه بل طرف ته ذهاب كوي دغه واقعه د ام سلمة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا چې :

**شهدت قتل الحسين** رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، تاريخ الخلفاء د امام سيوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ جلد ۱ صفحه ۱۸۲، امام ترمذي معرب بيروت چاپ جلد ۵ صفحه ۶۵۷، معجم الكبير د طبراني جلد ۱۷ صفحه ۱۹۲، دلائل النبوة د بيهقي جلد ۷ صفحه ۴۸، ذخائر العقبي جلد ۱ صفحه ۱۴۸، اسد الغابة جلد ۱ صفحه ۲۶۶، البداية والنهاية جلد ۸ صفحه ۲۱۹، تاريخ الاسلام للامام الذهبي جلد ۵ صفحه ۱۷، دا ټولو كتابونو په دغه مذكورو صفحو د ام سلمة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا دغه حديث ذكر كړې دي.

دارنګې البداية والنهاية جلد ۶ صفحه ۳۲۹ په دې كې حضرت عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې بندي شو نو د بنديانو نه فديې غوښتلې كيدې ده ته يې وويل چې فديه راوړه ده وويل :

**لا مال له**. زما خو څه مال نشته څه به راوړمه.

**فقال له**. رحمت عالم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته فرمايي :

**فأين المال الذي دفنته انت وأم الفضل تحت أسكفة الباب**.

تا او ام الفضل چې د كور د دروازې د درشل د لاندې كنده ويسته او مال مو په كې پټ كړو هغه مال څه شو او دا هغه وخت كې شوې وه چې دې جنګ ته را روان وه پيسې ځان سره راوړې بيا ور روان شو هسې نه چې زه مړ شمه هغه ځاى كې بې بې ورته دروازه كې ولاړه وه كنده يې وكنسته او په هغې كې يې مال پټ كړو دلته خو بل څوك نه وه كنه يوائې نبي اكرم

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته مدينه منوره کې ددې حال کشف شو .

فقال والله يا رسول الله ان هذا شيء لم يطلع عليه غيري وغير ام الفضل الا الله عزو جل .

د خداى تعالى نه سوا پرې بل څوک خبر نه وه ما او هغه پرې خبر وو بس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته الله پاک ددې علم ورکړو .

دارنګې تاريخ الخلفاء جلد ۱ صفحه ۱۸۲ :

واخرج البيهقي في الدلائل عن ابن عباس قال رأيت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بنصف النهار أشعث أغبر .

نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غرمه وه رابهر شو په خپو يې څه نه وه سر مبارک باندې هم څه نه وه .

وبيده قارورة . په لاس کې شيشه وه .

فيها دم . په هغې کې وينه وه .

فقلت بأبي و أمي يا رسول الله ما هذا ؟ . دا څه شي دي .

قال هذا دم الحسين وأصحابه . داد حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د هغه د ملګرو وينه ده .

لم ازل التقطه منذ اليوم فاحصي ذلك اليوم فوجدوه قتل يومئذٍ . هغه ورځ ما په نښه کړه په کومه ورځ چې دې مبارک راوتي وه همغه ورځ باندې بيا دې شهيد شوې وه .

داد حضرت عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حالات نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وفات نه بعد هغه ته دا کشف شوې دي .

دارنګې السيرة النبوية لابن هشام جلد ۳ صفحه ۱۶۰ د بدر غزى ته دوي روان دي په لاره کې قافله واړوله يو سړي په لاره روان دي .

فسألوه عن الناس فلم يجدوا عنده خبراً . تپوس يې ترې وکړو چې د ابو جهل ملګري چيرته دي يا د ابو سفيان قافله هغه وويل ما ته څه پته نشته .

فقال له الناس سلم على رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . خلکو ورته وويل راشه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته سلام وکړه .

قال . هغه اعرابي ورته وايي .

او فيكم رسول الله قالوا نعم فسلم عليه ثم قال ان كنت رسول الله فاخبرني عما في بطن ناقتي هذه .

كه ته پيغمبر يې زما ددې اوښې په خيټه کې څه شي دي بچي نر دي که ښځه ده څه شي په کې دي .

قال له سلمة بن سلامة بن وقش رضي الله عنه . سلمه بن سلامه ابن وقش راوړاندې شو عرض كوي :

لا تسأل رسول الله صلى الله عليه وسلم . نبي عليه السلام نه دا پوښتنې مه کوه .

واقبل علي . ما ته را مخامخ شه .

فانا أخبرك عن ذلك . دا خبر خو به زه هم درکړم درته چې دې کې څه دي .

نزوت عليها ففي بطنها منك سخلة . تا پرې ورټوپ کړي دې تا نه په دې کې څه شي دي هغه اعرابي ته وايي تا ددې اوښې سره بد كاري کړې ده او ستا نطفه په کې پرته ده .

نبي اكرم صلى الله عليه وسلم خو د حياء نه ورته څه ونه ويل او صحابي مبارک ته کشف وشو هغه ورته دا حال ښکاره کړو .

فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم مه افحشت على الرجل . ډير بد کنځل دې ورته وکړه نو صحابه وو ته هم د نبي عليه السلام له خاطره بعضې حالات کشف شوې دي .

دا رنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۴ صفحه ۲۲۸ :

حدثنا عبد الله حدثني ابي حدثنا يزيد بن هارون حدثنا حماد بن سلمة عن الزبير ابي عبد السلام عن ايوب بن عبد الله بن مكرز عن وابصة بن معبد قال اتيت رسول الله صلى الله عليه وسلم وانا اريد ان لا ادع شيئاً من البر والاثم الا سألته عنه .

ما زړه کې دا راوستل چې د خير او د شر يوه خبره هم نه پريږدم نن د نبي عليه السلام نه په كې تپوس كومه .

واذا عنده جمع . چې راغلم نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره جمعه د صحابوو ناسته وه .

فذهبت اتخطي الناس . د خلكو په اوږو مې خپې اړولي روان ومه .

فقالوا إليك يا وابصة عن رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إليك يا وابصة .

صحابه كرام آواز كوي لرې شه يا وابصة د خلكو په اوږو خپې اړوي .

فقلت انا وابصة دعوني . پرېږدي .

ادنو منه . چې ورنيږدې شمه .

فانه من احب الناس الي ان ادنوا منه . چې نيږدې شمه نو ما ته به ډيره ښه وي .

فقال لي . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي .

ادن يا وابصة ادن يا وابصة . رانيږدې شه ، رانيږدې شه .

فدنوت منه . ورنيږدې شومه .

حتى مست ركبتي ركبته . زما زنګنونه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د زنګنونو سره ولږيدل .

دا مشائخ مريدان ځان ته په همدا اسې شكل ځان ته كينوي .

فقال يا وابصة أخبرك ما جئت تسألني عنه او تسألني . زه خبر دركړم چې څه ته راغلې يې كه ته رانه تپوس كوي .

فقلت يا رسول الله فاخبرني قال جئت تسألني عن البر والاثم . دې ته راغلې يې چې د خير او شر پوښتنه كوي د بر او اثم .

قلت نعم فجمع اصابعه الثلاث . درې ګوتې سره غونډې كړې جوختې كړې .

فجعل ينكت بها في صدري . دا درې ګوتې زما په سينه كې وهلې لكه بعضې طالبان وايي دا پيران ولې مريدانو ته په سينه كې ګوتې ږدي .

ينكت بها في صدري ويقول يا وابصة إستفت نفسك البر . بر څه شي دي .

ما اطمأن اليه القلب واطمأنت إليه النفس والاثم ما حاك في القلب وتردد في الصدر وان

أفتاك الناس. اګر که خلک فتوی درکړي خو ته استفتاء د نفس او قلب نه کوه دا هغه وخت کې نفس او قلب صفا وي.

نو داد وابصة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو سوچ وه له ځان سره نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته ښکاره کړه چې ته نن په دې خیال باندې راغلې وې.

دارنګې المستدرك على الصحيحين جلد ۳ صفحه ۵۲ په دې کې د عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دي هغه د ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واقعه ده چې له غزی نه پاتې شوې وه یو ضعیف اوښ چا ورکړې وه بیا روان وه بیا هلته نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چا وویل چې یو سړي را روان دي چې دا به څوک وي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل:

کن اباذر. شه اباذر دا چې را روان یې ابوذر شه هغه چې رانیزدې شو رښتیا ابوذر غفاري وه بیا نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل:

رحم الله اباذر یمشي وحده. مزل یوائې کوي.

ویموت وحده. یوائې به وفات کیږي.

دغه اخبار د غیب دي چې دا به یوائې وفات کیږي دا خو ډیر وروسته دې د عثمان ذي النورین په خلافت کې ربذي ته لاړ د فتنې په دور کې او هلته ځان ته وفات شو.

ویبعث وحده..

ډیر وخت تیر شو بیا ربذي ته لاړو هلته چې همدغه شان وفات شو بیا د دفن یې څوک نه وه عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عراق نه را روان وه او هغه یې بیا جنازه وکړه د دفن یې کړو نو هغه ځای کې بیا ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل:

فاستهل ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یبکي. چغې وهلې په چغو یې ژړا کوله.

فقال. وویل یې:

صدق رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یرحم الله اباذر یمشي وحده ویموت وحده ویبعث وحده.

نو دا هغه اخبار د غیب دي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته دده د وفات قیصه ورته معلومه وه چې په څه شکل به وفات کیږي.

دارنګې حلية الاولياء جلد ٦ صفحه ۱۰۱ :

حدثنا سليمان بن احمد حدثنا بكر بن سهل حدثنا نعيم بن حماد حدثنا بقية عن سعيد بن سنان حدثنا ابو الزاهرية عن كثير بن مرة عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ ان الله عز وجل قد رفع لي الدنيا .

خدای تعالی دا دنیا ما ته راو اوچته کړه .

فأنا أنظر اليها وإلى ما هو كائن فيها الى يوم القيامة . ما ورته کتل تر قیامته پورې چې څه کیږي دې ټولو ته مې کتل .

كأنما انظر الى كفي هذه . لکه زه چې لاس ته ګورمه .

جليان من امر الله عزوجل جلاه لنبيه . داد خدای تعالی هغه تجلي وکړه او هغه څه يې ښکاره کړل خپل نبي لره .

كما جلاه للنبيين قبله . لکه مخکې انبياء ته چې خدای تعالی دا ښکاره کړي وه دغسې ما ته هم ښکاره کړل دا هغه کشف تام شو .

دارنګې شرح مشكل الآثار جلد ۷ صفحه ۳۲۳ :

قوله ﷺ ما بين قبري ومنبري روضة من رياض الجنة . وعلى ما في سواه ما بين بيتي ومنبري روضة من رياض الجنة .

وایي د دې تطبیق څه شي دي .

فكان تصحيحهما يجب به ان يكون بيته هو قبره . چې د ده کوټه د همده قبر دي .

ويكون ذلك علامة من علامات النبوة جليلة المقدار . دا وايي علامه د طبق نبوة شوه چې مخکې نه اخبار ورکړې دي .

لان الله عز وجل قد اخفى على كل نفس سواه ﷺ .

له نورو يې پټه کړې ده ته يې ښکاره کړه .

الأرض التي يموت فيها بقوله عز وجل في كتابه : ﴿وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ﴾

(لقمان آيت : ۳٤ ).

فاعلمه . علم ورکړو .

عزوجل . خدای تعالی .

الموضع الذي فيه يموت والموضع الذي فيه قبره حق علم ذلك في حياته . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته په حيات کې ددې علم حاصل شو .

وحق أعلمه من اعلمه من امته فهذه منزلة لا منزله فوقها زاده الله شرفاً وخيراً .

ده دا تطبيق وکړو ، زه در ته يو تطبيق کوم : ارض تموة دا علم خاصه ده په نزد د محققينو باندې دلته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د ارض تدفن علم ورکول شوې هغه بل تاويل دي دويم چې د جمهورو قول کې خلل را نه شي .

دا رنګې سنن الکبرى جلد ٦ صفحه ۱۷۸ صديق اکبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وصيت کوي تقسيم کړه دا مال دې هغه څوک دي :

وانما هو اخواك واختاك . دوه دي ورونه دي دوه دي خويندې دي .

قالت فقلت . عائشه بي بي فرمايي ما ورته وويل :

يا ابتاه هذه اسماء فمن الاخرى . دا اسماء ده بله خور مې کومه ده .

قال : وايي .

ذو بطن ابنة خارجة اراه جارية . هغه ابنت خارجه د هغې په خيټه چې ده په هغې مې ګمان د جينۍ دي .

دا حديث شرح السنة جلد ۸ صفحه ۳۰۳ شرح مشکل الآثار جلد ۱۵ صفحه ۲۹۲ ، مصنف عبد الرزاق جلد ۹ صفحه ۱۰۱ کې دا حديث را اخستې دي او مصنف عبد الرزاق دا الفاظ زيات کړي :

و ذو بطن ابنة خارجة قد ألقي في نفسي أنها جارية فأحسنوا إليها . خدای تعالی زما په زړه کې القاء وکړه چې دا جاريه ده .

په دې آخره کې د فتح الباري د ابن رجب يو ښکلي مضمون دي او ددې ټولو رواياتو تطبيق کوي چې کوم ځای کې منع راغلي او کوم ځای کې اثبات راغلې ددې مقصد څه شي دي خاصتاً د خمس لا يعلمهن الا الله په دې کې ابن رجب تفصيل کوي چې دا ټول په يو حکم کې نه دي اګر که سلفو کې محققين وايي دا خاصې د باري تعالى دي خو دې په کې فرق کوي دې وايي چې دې کې فقط د قيامت علم خاصه د باري تعالى ده ددې نه اخوا دا نور علوم چې دي دې کې تاويل کوي وايي خدای تعالى په تعليم سره ورکوي څه حصې ددې.

فتح الباري لابن رجب جلد ٦ صفحه ٣٤٢، باب لايدري متى يجيء المطر الا الله.

حضرت ابو هريره رضي الله عنه د نبي عليه السلام نه روايت کوي:

خمس لا يعلمهن الا الله.

دا حديث امام بخاري هم په کتاب الايمان کې را اخيستې دي اول کې دا روايات ذکر کوي:

قال النبي صلى الله عليه وسلم مفاتح الغيب خمس لا يعلمها الا الله لا يعلم احد ما يكون في غد الا الله ولا يعلم احد ما يكون في الارحام ولا تعلم نفس ما تكسب غدا وما تدري نفس بأي أرض تموت وما يدري أحد متى يجيء المطر قد سبق في الباب المشار اليه الاشارة الى اختصاص الله بعلم هذه الخمس التي هي مفاتح الغيب التي قال فيها ﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾ (الانعام آيت: ٥٩).

اوس وايي:

وهذه الخمس المذكورة في حديث ابن عمر ليس فيها علم الساعة. دې کې د قيامت علم نه دې ذکر شوې بلکې ذکر د متى يجيء المطر بدل الساعة عبارت راغلې دي.

وهذا مما يدل على أن علم الله الذي استأثر به دون خلقه لم ينحصر في خمس.

وايي د بخاري د ابن عمر په روايت کې د قيامت علم دغې پنځو کې نه دې راوړل شوې نو چې هغه را واخلې شپږ شول، وايي ددې نه پته ولګيدله چې دغه علوم چې خدای تعالى پرې خاص دي پنځه نه دي.

بل هو اکثر من ذلك . دا ډیر دي .

مثل علمه بعدد خلقه . دا ټول عدد د مخلوق څومره دي وایي دا دلته ذکر نه ده او دا خاصه د باري تعالی ده .

کما قال ﴿ وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلاَّ يَعْلَمُهَا وَلاَ حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الأَرْضِ وَلاَ رَطْبٍ وَلاَ يَابِسٍ إِلاَّ فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴾ ( الانعام آیت : ۵۹)

دا خاصه د باري تعالی ده کلي تفصیل چې څوک عقیده ساتي دا ځای پرې رد کوي.

ومثل استئثاره بعلمه بذاته وصفاته واسمائه .

په کنه د ذات باندې دا علم د هیچا نشته دي هغه هم دې پنځو کې ذکر نه دي .

﴿ وَلاَ يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا ﴾ ( سورة طه آیت : ۱۱۰) .

وفي حديث ابن مسعود في ذكر اسمائه . او استأثرت به في علم الغيب عندك .

هغه اسم چې تا ځان سره خاص کړي په علم غیب کې او ستا اسم دي او مونږ ته پرې علم نشته د هغې په وجه سوال در نه کوم نو چې هر کله علوم خاصه د باري تعالی پنځه نه شو زیات دي نو دا پنځه دلته ولې راغلل .

وانما ذكرت هذه الخمس لحاجة الناس الى معرفة اختصاص الله بعلمها والعلم بمجموعها مما اختص الله بعلمه وكذا العلم القاطع بكل فرد فرد من افرادها .

کوري فردي علم قاطع علم دا خاصه د باري تعالی ده .

واما الاطلاع على شيء يسير من افرادها بطريق غير قاطع بل يحتمل الخطاء والاصابة فهو غير منفي .

هغه منفي نه دي ترې نه په دغه پنځو کې هم منفي نه دي سوا د قیامت د علم نه .

لانه لا يدخل في العلم الذي اختص الله به ونفاه عن غيره .

ولې خاصه د باري تعالی علم تفصیلي قاطع دي او غیر ته یې چې ورکړو دا بعضې اشیاء باندې شو .

وتقدم ايضاً ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوتي علم كل شيء الا هذه الخمس.
يعنې ذاتي يې نشته.
فاما اطلاع الله سبحانه له على شيء من افرادها فانه غير منفي أيضاً وهو داخل في قوله تعالى:
﴿عَالِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِ أَحَدًا إِلَّا مَنِ ارْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ﴾ (سورة الجن آيت: ۲۶-۲۷).
ولكن علم الساعة مما اختص الله به.
قيامت علم خاص دي تر ده پورې هغه يې چا ته نه دي ورکړې.
ولم يطلع عليه غيره كما تقدم في حديث سؤال جبريل للنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وكذلك جملة العلم بما في غد.
د صبا ورځې په ټولو څيزونو علم دا خاصه د باري تعالى ده.
وقد قالت جارية بحضرته صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفينا نبي يعلم ما في غد فنهاها النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن قول ذلك.
ولې يې منع کړه ځکه دلته وهم د ما راغې.
وفينا نبي يعلم ما في غد.
دا ما د عموم د پاره دي او استغراق د پاره دي نو په دغه وجه باندې جملة العلم د ما في غد يې ورته ثابت کړو دغه افراط دي ځکه يې منعه کړه.
وقد خرجه البخاري في النكاح واما العلم بما في الارحام فينفرد الله تعالى بعلمه قبل أن يأمر ملك الارحام بتخليقه وكتابته.
دا څلور مياشتې دي.
ثم بعد ذلك. بيا د څلورو مياشتو نه بعد.
قد يطلع الله عليه من يشاء من خلقه. بعضې عبادو ته په دې اطلاع ورکوي.
كما اطلع عليه ملك الارحام. هغه خو هم مخلوق دي ملک د ارحام چې پوښتنه کوي يا

الله ذکر دي که انثی دي خالق ورته وايي ذکر دې نو علم يې راشي په دغه وخت کې هغه خو هم خالق نه دي مخلوق دي چې کومه فرشته په دغه وخت مقرره ده خو هغه وخت کې پرې پوه شي چې کوم وخت کې ده کې روح واچول شي .

فان کان من الرسل فانه يطلع عليه علماً يقيناً .

هغې کې خطاء نه وي .

وان کان من غيرهم من الصديقين والصالحين فقد يطلعه الله تعالى عليه ظاهراً کما روي الزهري عن عروة عن عائشة ان ابابکر لما حضرته الوفاة قال لها في کلام ذکره انما هو اخوانك واختاك قالت فقلت هذا اخواي فمن اختاي ؟ قال ذو بطن ابنة خارجة فاني أظنها جارية .

بل روايت کې راځي :

قد القي في روعي انها جارية فاستوصي بها خيراً فولدت ام کلثوم .

هغه يې بيا وزيګوله .

واما علم النفس بما تکسبه غدا وبأي أرض تموت ومتى يجيء المطر فهذا على عمومه لا يعلمه الا الله واما الاطلاع على بعض افراده فإن کان بإطلاع من الله لبعض رسله کان مخصوصاً من هذا العموم .

نو بيا يې بعضې اوقاتو کې ورکوي :

کما أطلع النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ على کثير من الغيوب المستقبلة وکان يخبر بها فبعضها يتعلق بکسبه مثل اخباره انه يقتل امية بن خلف .

ده مخکې خبر ورکړې وه چې اميه بن خلف به زه وژنمه نو دا خو دده کسب دي ما في الغد باندې خو په بعضې اشياء دي :

واخبر سعد بن معاذ بذلك امية بمکة . سعد بن معاذ اميه ته ووېل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ داسې فرمايلي وژني به دې .

وقال امية : والله ما يکذب محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . وويل امية قسم په الله محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دروغ نه وايي هغه وه د احد ميدان کې ووهه او چې کله رابغ مقام ته ورسيده مړ شو.

واکثره لا يتعلق بکسبه. ډير کارونه د ما في الغد د بيان کړې دي هغه د ده کسب پورې تعلق نه لري.

مثل اخباره عن الصور المستقبلة في أمته وغيرهم وهو کثير جداً.

وقد أخبر بتبوك انه تهب الليلة ريح شديدة. بيګا ته يو سخت باد راشي بيا يې وويل يو غټ کافر به مړ کيږي بيا مدينه منوره کې د منافقانو يو مشر وه سخت غټ کافر وه هغه مړ شوې وه په دې شپه او هغه باد راوالوتو.

نو نچوړ د ټول بيان دا چې دغه پنځه خاصې نه دي دې پنځو نه اخوا څه نورې هم شته دي هغه هم د خداى تعالى په خواصو کې دي خو بعضې مغيبات چې مخلوق ته ترې ورکوي د هغې سره څه مقابله نشته دا يې د هغه متأخرينو رايه پيش کړه هر چې اسلاف دي عبدالله ابن مسعود او ابن عباس رضي الله عنه هغه خمسه خاصه د بارې تعالى ګرځوي او څه علماء هغوي په تعليم د خداى تعالى عبادو ته څه بعضې اشياء د هغې نه هم ورکولې شي.

دا مسئله د علم غيب وه په آخره کې څه حوالې زمونږ د فقهاو چې په دې مسئله باندې څه ردود کړي دي نو د هغې د پاره يو تطبيق به ذکر کوو:

بحر الرائق جلد ۵، ۷، صفحه ۱۷ کې وايي:

والظاهر ان ادعاء ظن الغيب حرام وليس بکفر بخلاف ادعاء علم الغيب فانه کفر.

د ګمان د غيبو چې امکان دي چې صبا باران وشي وايي دا حرام دي داسې دي نه وايي د عوامو عقيده پرې خرابيږي خو کفر نه دي او که چا دعوى د علم غيب وکړه وايي کافر کيږي.

او دغه رنګې حاشية ابن عابدين جلد ۴ صفحه ۲۴ په هغې کې د بزازي نه نقل کوي:

يکفر بادعاء علم الغيب. په دعوى د علم غيب سړي کافر کيږي.

او دارنګې د تتارخانې عبارت هم په دغه صفحه کې پيش کوي د دغې عباراتو چې زمونږ فقهاء دي ته نسبت د کفر کړې دي يا ملا علي قاري شرح فقه اکبر کې کړې دي دعوى د علم غيب ته يې کفر ويلي دي يا لکه مخکې چې چا راليږلي وه د قاضي خان په حواله چې

چا نکاح ترله او گواه یې په کې نبي علیه السلام او خدای تعالی وګرځول وایي دا کفر دي ځکه نبي علیه السلام یې عالم بالغیب وګڼه دا یې ورته علت ګرځولي دي ددې تولو نچوړ حاشیه ابن عابدین جلد ۴ صفحه ۲۴۳ کې هغه تفصیل سره بیان کړي دي .

هغه وایي مطلب في دعوی علم الغیب په دعوی د علم غیب کې نچوړ او رساله :

قلت وحاصله ان دعوی علم الغیب معارضة لنص القرآن فیکفر بها .

د علم غیب دعوی که چا وکړه چې زه عالم بالغیب یمه نو وایي داد نص قران مخالفه ده پرې کافر کیږي .

الا اذا اسند ذلك صریحاً أو دلالتاً الی سبب من الله کوحي او الهام .

مګر که چیرته نسبت ددې علم غیب یې او که یو سبب ته چې هغه سبب وحي ده یا الهام دي بیا کفر نه دي نو دلته خپله پته ولګیده چې زمونږ فقهاء مدعي د علم غیب ته کافر ویلي دي معنی دا چې علم غیب ذاتي ثابتوي که چیرته یې عطاء من الله وګڼله په طریقې د وحې چې د وحې ډیر اقسام دي یا په طریقې د الهام سره نو هغې ته بیا کفر نه ویلې کیږي .

دده له عبارت نه نچوړ دغه راووته نور په علم غیب ذاتي باندې راغې یا په کلي تفصیلي استغراقي فردي باندې راغې او اثبات چې وشو هغه علم غیب جزي شو عطائي کله وي کله نه وي بعضې اوقاتو کې خدای تعالی ورکوي بعضې اوقاتو کې نه ورکوي او دا که څوک وایي چې علم نه شي ویلي نصوص پرې مونږ پیش کړل چې د علم اطلاق پرې باندې کیږي البته داسې الفاظ وویل : ان النبي عالم بالغیب دا اطلاقات نه کتابونو کې شته نه مفسرینو را اخیستي دي په داسې الفاظو باندې نسبت نبي علیه السلام ته بنه نه دي ځکه وهم د علم غیب کلي په کې کیږي او د ذاتي دعوی په کې راځي بلکې داسې به سړي وایي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په بعضې مغیباتو علم لري انه عالم الغیب دا چیرته هم کتبو ده ته نه دي ویلې .

بل دا صفت د خدای په صفاتو کې عالم الغیب والشهادة راغلي نو مخلوق ته چې په دغه الفاظو نسبت ونه شي نو دا به بنه خبره وي .

مسئله د علم غیب خلاصه شوه

